# څرک

پنځلسم کال، پنځمه، پرلپسې ۱۰۶مه ګڼه،
سرطان۱۳۹۷ل، شوال المکرم۱۴۳۹هـ ق، جولای۲۰۱۸م

## د سعودي ناستې په

### په روان جهاد کوم اثر پرېباسي؟



په جده کې د ډاکټر شفیق ژړا
که د تمـــساح اوښـــکې؟؟



شغال د تداوم په مقصد د پیل شوې دسیسې په اړه

## د اسلامي امارت اعلامیه




**علمي، فرهنګي، ټولنیزه اسلامي خپرونه**

پنځلسم کال، پنځمه، پرلپسې ۱۰۶مه ګڼه،
سرطان۱۳۹۷ل، شوال المکرم۱۴۳۹هـ ق، جولای۲۰۱۸م

**امتیاز :**

**دا متیازخاوند :** دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کمیسیون

**مسؤل مدیر :** عبید تنویر

**لیکوال پلاوی :** ډاکټر صابر ، حمید ، جمیل مېړنی او افضل محمد تراب

**ګډون :**

| | |
|---|---|
| افغانستان : | ۱۱۸۰ افغانۍ |
| پاکستان : | ۲۴۰ کلداري |
| امریکا : | ۶۰ ډالره |
| اروپا : | ۶۰ یورو |
| یوه ګڼه : | ۱۵ افغانۍ<br>۲۵ کلداري |

**یادونه**

حتمي نه ده چې په څرک کې خپرې شوې مقالې داداري دپالیسي ترجماني وکړي هره لیکنه دلیکوال خپل نظر دی.

**تخنیکي چارې: تخنیکي څانګه**

**پتې :**

srak_111@yahoo.com


# لړلیک

بسم الله الرحمن الرحیم

سرمقاله

# د سعودي ناستې به په روان جهاد کوم اثر پریباسي؟

دروانی میلادي میاشتې جولای په ۱۰ او۱۱ نیټه دسعودي عربستان دجده اومکي مکرمې په ښارونوکې دسعودي عربستان په کوربتوب غبرګي ناستې ترسره شوي چې شعاریې په افغانستان کې دامن اوسولي راتګ وو.

په یادوناستوکې دافغانستان په ګډون دګڼواسلامي هیوادونویوشمیرملایانواوپوهانوپکې برخه اخیستي وه .

له ورایه داسې ښکاره کیده اوپه دې اړه پراخ تبلیغات هم شوي وو چې دسعودي په ناستوکې چې د۳۷ اسلامي هیوادونودیني عالمان به پکې ګډون کوي ارومروبه دافغانستان دروانې معضلې دحل په اړه ازاد اوبې طرفه بحث ترسره شي اوبالاخره به یې په پریکړه لیک کې داسې ټکي مخې ته راشي چې رښتیاهم دافغان ولس داوږدودردونواوکړاوونودله منځه وړلوپه برخه کې مرستندوی ووسي اوپه خاص ډول به دامریکاپه مشری دروان اشغال دخاتمې په برخه کې مشخص دریځ ولري.

خوچې کله دنوموړي غونډې پریکړه لیک اعلان شو له یوې مخې اوټکي په ټکي یې دکابل رژیم هغه وړاندیزونه اوغوښتنې چې دغونډې په ړومبی ورځ دکابل رژیم منسوبینوغونډې ته وړاندې اوولوستي رااخیستې وي اوبوه بله داسې ماده چې د نوموړي ناستې په بې طرفی دلالت وکړي نه وه درج کړي

پریکړه لیک چې ۸ مادې لرلې ټولې په دې څرخیدې چې په کابل کې دجان کیري په لاس ټومبل شوي رژیم سل په سله اسلامي ، واکمنان یې ټینګ مسلمانان، قانون یې شرعي اوجګړه ورسره ناروا ده اوطالبان دې لـه جنګ څخه لاس واخلي اودکابل رژیم دسولي اوروغې غوښتنودې لبیک ووایي.

دغو نمایشي ملایانو چې له (الف) څخه نیولې تر (ی) پورې دولتي مامورین وو اویو داسې عالم پکې شریک نه وو چې لږ ترلږه دې داسلامي امت دروانومصیبتونواودردونوپه اړه خپلواک اوشرعي نظراوموقف ولري دافغانستان دروان بحران په اړه یې له سختې اوتاریخي جفاڅخه کاراخیست ؛ دوئ دامریکاپه مشری د یرغلګرو کفارو پر ټولو مظالمو، وحشتونو او غیر انساني کړنو پرده واچوله او یوازې یې د مجاهد ملت سپېڅلې مقاومت ته د غندنې ګوته پورته کړه

دیادې غونډې یوه برخوال هم دا جرئت ونه کړ چې په افغانستان کې د امریکا اشغال، نظامی شتون، په بې و زلو افغانانو دامریکا بې رحمه بمبارۍ او ورسره نورې ناخوالې صرف یادې کړي اوحداقل زیاتی یې وبولي!! ؟

دجده اومکي مکرمې ناستوپه اثبات ورسوله چې برخوال ، ویناوال اوکوربانه یې ټول له یوه اب خورڅخه تغذیه ، سرچینه اوقومنده اخیسته چې هغه مکاره اویرغلګره امریکاوه ځکه وار له مخه یې امریکایي قومندان نیکولسن د مذهبی فشار پـه عنـوان طرحه وړانـدی کړی وه چې دیولړنمایشي فتواواوغونډوپه ترڅ کې به دطالبانوجهادي داعیه کمزوري اوهغوئ دیته اړکړي چې کابل رژیم سره سوله اوروغه وکړي

خودجنرال نیکلسون په حکم اوقومنده دمذهبي فشار دغه مزدوري اوجفاکاري ځیري دي پوه وي چې افغانان ددیني حقپالوعلماوو اودامریکایي درباري ملایانوترمنځ ډیر ښه توپیر کولای شي؛ داشغال ،کفر او ګمراهی په ضد روان جهاد هیڅکله ددغوضمیر پر وشو ملایانو په فتوا ندی پیل شوی او نه یې ددغه برحق جهاد دقوت اوکمزوری کیلي ددوئ په لاسو کې ده.

که سل اوزر دغسې غونډې هم وشي اوپه ترڅ کې یې بې شمیره نورې امریکایي خوا فتوا صادرې شي اوددې هڅه وکړي چې روان جهاد بین الافغاني جګړه یاده کړي دماشي دیوه وزر په اندازه به هم کوم اثر ونه لري.

دحق اوخپلواکی ګټلودغه معرکه به ترهغوروانه وي چې اشغالګرامریکایان زمونږ له ټاټوبي په ټيټوسترګونه وي وتلي اویوه سوچه اسلامي نظام نه وي قائیم شوی . ان شاالله تعالی.



ارمان

# سعودي عربستان کې دسرکاري ملایانو سرکاري ناسته!

همدا شیبې (ددې تورو لیکلو پر مهال) د سعودي عربستان په جده ښار کې دسرکاري علماوو یوه سرکاري غونډه پیل شوې، په کومه غونډه کې چې دنیړدې ۳۷ اسلامي هیوادو سرکاري علماء راټول شوي او دبحث کولو موضوع یې په افغانستانکې دسولې راوستل دي!

په دې غونډه کې دافغانستان دازادو،خپلواکو او ریښتینو جیدو علماوو پرځای دکابل رژیم وظیفه خواره او سرکاري ملانما ځیرې ګډون لري چې دافغان ولس دننه دهغوی علمي اعتبار او مقام درلودل خو لا لري خبره چې آن له نومونو سره یې هم څوک اشناندي یواځې داچې هغوی دګوډاګی رژیم هغه معاش خواره اوځیره خواره دي چې دحق پټولو لپاره یې ساتلي او دحکومتي نارواو څخه د ملاتړ او حمایت کولو لپاره ورته ډالري معاشونه ورکوي، هغوی افغانستان کې دامریکا په ناروا پوځي شتون سترګې پټې کړې او دځو ناچلو سیکو په بدل او عوض کې یې خپل ایمانونه او ضمیرونه پلورلي او په رڼا ورځ دخلکو په سترګو کې دخاورو په شیندلو سره دروانې جګړې دېرې ګوته مجاهدینو ته او طالبانو ته نیسي! او امریکایانو او دهغوی پوځي موجودیت ته ګوته نه نیسي څنګه چې کشاف پخپله اوږده تراشل شوې وینا کې ترپایه دامریکا نوم هم په خوله ندی چې امریکایان په افغانستان کې څه کوي؟ او جنګ دچا په سر روان دی.

له ګاونډي هېواد پاکستان څخه هم یو شمیر جید علماء هم دغې غونډې ته وربلل شوي وو خو داچې هغوی ددینه وړاندې په اندونیزیا کې د ځینو مخفي حقایقو په درک کولو سره محسوس کړي چې دعلماوو ترنامه لاندې غونډو او جریانونو څخه مستقیماً امریکا د خپل یرغل لپاره دجواز ترلاسه کولو هڅه کوي او دنړۍ علماء دخپلو موخو لپاره دآلې په حیث استعمالول غواړي دیته په کتو سره هغوی داځل ور سره پریکون وکړ او یواځې ددغه هېواد یوتن سرکاري فروفیسر قبله ایاز (د اسلامي نظریاتي کونسل مشر ) ورغلی دی څوک چې کوم ثقه دیني عالم نه بلکې دپوهنتون پروفیسر پاته دی او یواځې دمطالعې ترحده لږ ډیر اسلامي قوانین مطالعه کړي

په ورته توګه له نوروهېوادو څخه هم هغه سکالران چې داسلامي علومو په برخه کې هغوی نیمه معلومات او سرسري علم لري دجدې ناستې ته بلل شوي په دې علاوه داسلامي نړۍ دمشهورو دیني جامعو لکه دار العلوم دیوبند اونورو وتلیو جامعو هیڅ یو جید، نومیالی عالم اوبا اعتماده معاصر فقیه پکې ګډون نلري چې دا پخپله ددې غونډې دبطلان لپاره ښکاره دلیل دی چې دنړۍ له یو هېواد څخه هم اهل حق علماء ورته ندي لاړ

په دې تو ګه موږ ویلای شو چې ورته بلل شوي خلک داسلامی نړۍ د واقعي علماوو استازي نه بلکې دخپلو دولتونو او حکومتونو رسمي او سرکاري استازي دي او دخپلو حکومتوپه استازیتوب لاړدي بدون شک دهغوی پریکړې او تصامیم د خپلو حکومتونو دسیاستونو او پالیسو تابع دي هیڅکله د واقعبینانه علمي لرلید څخه فکر نکوي بلکې دخپلو حکومتونو لرلیدونو ته په کتو فتوا وې صادروي او ښکاره ده چې دحکومتونو دپالیسیو لپاره په مقابل کې دعظیم الشان قرآن ،سنت او فقهې حکمونه له پامه غورځوي

ترکومه ځایه چې دغونډې دجریان عکاسي روانه ده بریښي چې دناستې ګډونوال

په حقایقو خاورې اړوي واقعیتونه له خلکو پټوي څنګه چې د نړۍ هر باشعوره سړی پوهیږي چې افغانستان کې روانه معضله له څا دظلمونو اووحشتونو څخه پیښه ده؟ څوک هره ورځ په لسګونو افغانان په شهادت رسوي او دچا لاسونه دافغانانو په وینو سره دي؟ افغانستان کې دروانو بدمرغیو او ناخوالو عامل امریکا که بل څوک ؟ لیکن داچې دمسلمانانو واکمن دامریکا نوکران اوتابع دي هغوی دامریکا لپاره واقعیتونه پټوي او دملاتړ لپاره یې دلایل لټوي.

کله چې موږ دغونډې ویناوالو ته غوږ شو هغوی ددې په ځای چې واقعیتونه بیان کړي دامریکا ظلمونه او وحشتونه محکوم کړي دسولې فضایل بیانوي، دصلحې په اړه دعظیم الشان قرآن ایاتونه او درسول الله ارشادات په نا سمه توګه تطبیقوي داسې تشریحات ورکوي چې ګواکې په افغانستان کې روان جنګ دافغانانو ترمنځ جنګ وي' نه دامریکا او افغانانو ترمنځ جنګ! حال داچې افغانستان جنګ بین الافغاني جنګ نه دی دا دامریکا او افغانانو ترمنځ جنګ دی،نو د دوی ترمنځ دصلحې راوستو کوښښونه دتعجب وړدي ایا په داسې حال کې چې امریکا دافغانستان زمکه او فضاء دواړه په غصب او زور سره اشغال کړې او په افغانانو یې خپل یو لاسپوځی او ګوډاګی حکومت تپلی ورسره صلحه کیدای شي؟ دغونډې کوربانه او ګډونوال په تیر ایستونکې لهجه لګیا دي دا ذهنیت ورکوي چې ګواکي جنګ دامریکا او افغانانو ترمنځ نه؛ بلکې افغانان پخپل منځ په جنګ دي او دوی یې ترمنځ سوله راوستل غواړي!

په دې توګه دجدې سرکاري غونډه یواځې هغه شعارونه زمزمه کوي کوم چې امریکا او د دوی حکومتونه زمزمه کوي او کوښښ کوي چې ځانونه امریکا ته مخلصین وښیي په دفاع او طرفدارۍ کې یې داسلامي شریعت څرګند حکمونه تحریفوي څو امریکا له هغوی خوشاله شي

که په ربښتیا سره دوی سوله غوښتونکې وای بیا ولې په دغسې یوه مهمه غونډه کې دامریکا دموجودیت موضوع نشي راپورته کولی اوپه اړه یې بحث نشي کولی چې اخر امریکا اشغال کله پای ته رسوي او کله عسکر وباسي؟ خو ښکاره ددوی دویناوو او خبرونه امریکا دفشار په حیث کار اخلي څو نړۍ کې مسلمانانو په مجاهدینو بې باوره کړي

اوپه ترځ کې یې داوږدې مودې لپاره دخپل شتون لپاره زمینه مساعده کړي څکه امریکا په مخامخ جنګ کې برۍ ونشوای مندلی هغه فکر کوي چې دجهاد دنامشروع ګرځولو سره به دافغانانو په عزایمو کې بدلون راولي خو ښکاره ده چې افغانان هوښیار اوباتور قام دی په دغو ټولو جعلي جریانو او دسیسو پوهیږي چې یې ترشا یې دچا لاس دی؟

دکتونکو په اند دجدې اومکې مکرمې غونډې به په طالبانو او دهغوی په مبارزه هیڅ کوم قسم منفي تاثیر ونلري څکه نړۍ کې هرسړی داسلامي نړۍ دواکمنو کړو وړو ته دشک په نظر ګوري هغوی ازاد واکمن نه ګڼي په دې توګه دغه هلې ځلې بې پرې نه بولي او ورته دشک په نظر ګوري حتماً په دې سره افغانستان کې دامریکا په ګډون ددغو ټولو هېوادو پرضد دافغانانو کرکه او نفرت به نور هم راوپاروي او هم دمجاهدینو عملیات او بریدونه به له پخوا زیات غښتلي او پراخ شي

دشک پرته افغانان حرمینو شریفینوته دزړونه احترام لري او وسره بې کچې مینه لري لیکن افغانان ساده ګان ندي په دومره خامخا پوهیږي چې سعودي عربستان څا دیته اړکړی چې ددغې غونډې کوربتوب او منې؟ لیکن تاریخ داهرڅه په دقت سره څاري راتلونکی خت به داثابته کړي چې دسعودي واکمنو دا ګام څومره خطاء پایلې لري!پکار خو داوه چې سعودي عربستان د قوي اسلامي هېواد په حیث په امریکا باندې فشار اچولی وای چې سملاسي خپل عسکر له افغانستانه وباسي لیکن ددې په ځای غواړي چې امریکا باید په افغانستان کې پاتې شي او په وړاندې جنګیدونکې مجاهدین دي ورته وسلې په زمکه وغورځوي لیکن ښکاره ده چې افغانانو روان جهاد دخپلو دیني علماوو په فتوا پیل کړی او تر هغه به ورته دوام ورکوي چې څوورو ستی امریکا یې عسکر له افغانستانه وتلی نه وي نوپه دې توګه دنورو هېوادو علماء دي ځانونه نه ستړي کوي افغانان هسې هم دوی فتوای ته کومه اعتناء او ارزښت نه ورکوي او نه د دوی په خوله به خدای مکړه روان جهاد پای ته رسوي.



# دمفکر! مات اوربند؟!!

■ م عبید

دجان کیري په خاص لطف اوفرمایش دجوړشوي رژیم مشراشرف غني چې امریکایي رسنی یې دنړۍ دویم نمبرمفکر! هم یادوي پرون یې دیوې خبری ناستې مهال ووئیل چې نوردکابل رژیم اومجاهدینوترمنځ داوربندموده پای ته رسیدلي ؛ نوخپلوقواووته امرکوي چې اوربند مات اوخپل هوایی اوځمکني عملیات پیل کړي.

نه پوهیږوچې مفکردلوی افغان ولس په سترګوکې په کوم جرائت دخاوروشیندلوهڅه کوي ایا افغانان ورته الله مکره له یوې مخې ړانده او دومره بې درکه ښکاري چې نه امریکایي چورلکي ویني ، نه یې ړندي بمباری ، نه داجیري اردو اوصفر۱ قطعو ناترسه چاپي اونه داستکبار دغلیمانو په لاس دعاموخلکودجونګړو تباهي اودشتمنیولوټ او تالان ؟

له کومي ورځي چې مفکر داوربند اعلان کړی وو ترپرونه ورځي پوري دمیدان وردګو، لوګر ، پکتیا، پکتیکا ، خوست ، غزني ، هلمند، لغمان ، بغلان اونورو ولایتونوکې دامریکایي وحشیانوپه بمباریو اودصفریک قطعوپه چاپواوعملیاتوکې دولسي خلکویونیم سل کورونه په دې جرم چې وګرویې له طالبانوسره اړیکي لرلي ، دوډی اوخوراک څښاک یې ورکړی وران ویجاړکړي ، شتمنی یې چورکړي اوپه لسهاوو خلکوته یې مرګ ژوبله اړولي

که چاته په دې اړه کوم شک اوتردد ښکاري نوکولای شي په دغوټولویادوولایتونوکې په ازادانه ډول پوښتنی وکړي چې دکمکي اختر له تیریدووروسته دداخلي اوخارجي یرغلګرودوحشتونوپه نتیجه کې عام اوبې دفاع ولس ته څومره ځاني اومالي زیانونه اوتلفات وراوښتي دغه رازدې په نوموړوولایتونوکې له مرکزي روغتونووپوښتي چې څومره ټپیان یې په دغوورځواوشپوکې تداوي اومعالجه کړي دي اودزخم اوټپي کیدوعلتونه یې څه وو؟

نومفکر ته دې وویلی شي چې افغانان په خپلودغونمایشي- اوارایشي- خبرونشي- تیرایستلی ، درژیم وحشي- ملیشو اواربکیانواوهم دې بادارانویوه ورځ دې هم دافغان مجاهدولس په خلاف له جنګ ، یرغل ، غارت اوشقاوت څخه لاس ندی اخیستی ؛ نوته اوس دکوم اوربند دماتولوخبره کوي.

امریکایانوتاته اوستادرژیم ټول باندډ اودارودستي ته همدغه دنده اومکلفیت سپارلی چې دجګړي میدان په تودوي ، دجنګ عوامل به ډیروي ، دافغانانوترمنځ به داسې ناورینونه منځته راولی چې په ترڅ کې قومي ، لساني ، مذهبي اوسمتي تربګنیواومخالفتونوته لمن ووهل شي ، ترڅوخلک مجبور شي چې دامریکایانوپه اشغال اوشتون سترګي پټي کړي اوهرڅوک دخپلواړتیاوو اوشخړو حل اوبرتري په دې کې ولټوي چې دامریکایانوغلامي ومني .

مفکره که تارښتیاغوښتلی چې په افغانستان کې سوله اوارامي راغلي وای

اوافغانان له مصیبتونواودردونوپه ارام اونجات کې پاتي شوي وای نودخپل راتګ
په دریمه ورځ به دې له امریکایانوسره دافغانستان دخرڅلاو معامله نکوله
اوامنیتي تړون به دې نه ورسره لاسلیکاوه ، دغه راز به دې دراتګ په ړومبی
اونی کې دځرخي پله دزرګونو مظلوموزندانوپه زخمونو مالګي نه دوړولای چې
هلته ورغلي اوددې په ځای چې له
اسیرانوسره دترحم اوخواخوږۍ مظاهره
وکړی په زیاته قبیحه اوناترسه لهجه
اوتورودې زندانیانوته ووئیل چې هغه
دوسلوال پوځ دسراعلی قوماندان په صفت
مسؤلیت لري چې دملي اردو اوپولیسوپه
لورکه چا یوفیرهم کړي وي کلکه سزا به
ورکوي اوترینه خلاصیدای نشي !!

دا اودیته ورته نور هغه تاریخي
جنایتونه اوګامونه دي چې تا اودجان
کیري رژیم سربراهانو په لوی لاس
دافغانستان دتباهی اوویجاړۍ په حق کې
واخیستل ، دسولي ، امن اواستقرار تولي
لاري موتالاترغه او وتړلي ، هرڅه مو
متنازع اودجګړي دتودولوکومي ته
وروغورځول .

اوس چې دمتعال رب جل جلاله په
نصرت امریکایان په خپلوټولو ستراتیژیو
او دباوونوکې ناکام اوخجل وختل نومفکره
تاته یې دادنده سپارلي چې جعلي فتواوي
برابري اواستخباراتي پرلتیان وته وروزي
اوهم دنمایشي اوربند دغځولواوبیا ماتولو
په دوکوخلک تیرباسي ، تېینګ باور ولره
چې دغه یوه حربه اودسیسه دې هم په درد
نه خوري هرڅوک دربانډي پوه دي چې
لینګي دي ګروب ، رژیم دي شړیدلی
اوامریکایان که نن وي که سبا په
خپلوغوړونوبه ترینه واوري چې نوردرنه
ولاړودافغانستان مهاریدل زمونږ دوس
اوتوان کارندی.
ان شاء الله تعالی

## سوله باید څنګه او له چا سره وشي... ؟

لیکنه: طاهر زابلــول

موږ باید په دی خبره ښه سر خلاص کړو چه سوله څوک نه کوی او څوک یې دښمنان دی تر ټولو اول باید دا خبره روښانه شي چه اول دلته زموږ هیواد ته جنګ چا راوړئ او ولی یې په هغه وخت کې د سولی او تفاهم له لاری د حل فکر نه کاوه.

دلته موږ یو اسلامی شرعی نظام درلود چه هم په 95٪ فیصده خاوره کې امن وو او هم هیواد وال په هغه قرآنې نظام خوشحال وه خو مشکیل دا وو چه غربیانو او یهودانوته یو اسلامی او شرعی نظام د منلو نه وو او غو ښتل یی چه دا نظام نسکور کړی.

چه کله کال 2001 کې نظام سقوط شو او په ټول هیواد کې پر ازادی غوښتونکو او با وجدانه خلګو باندی زمکه سره تبې شوه او په ټول هیواد کې یه د ارامی او اوسیدلو ځای نه درلود او هیڅ یو بشری بنسټ په دی خوارو او بی دفاع خلګو سر ونه خوږاوه او نه کومه ډله د سولې په نامه را سرګنده شوه.

خو چه کله مجاهد ملت د خپل دین ملت او ناموس څخه ده دفاع لپاره متې رت ښې وهلې او د الله جل جلاله په توکل باندی په تش لاس ددی فرعونې لښکرو په مقابل کې جهاد شروع کړ او د الله جل جلاله په نصرت سره یئ د کفر اشربانې خاوری په سر کړل او پر ځان یی حیران کړل.

اوس نو دلته هم سوله مهمه شوه او هم الهی امر شو او هم یئ فلې کیدل ضروری شول او حیران دی ته یم جنګ د امریکا په سرپرستې کې د ټولی نړۍ کفارو شروع کړئ خو روغه باید له غلام بی صلاحیته او ګوډاګې دا ری سره وشې.

لنډه دا چه باید له امریکا سره مخامخ خبره وشې او د خبرو په مهال د هغوئ د تلو نیټه وټاکل شې او د جنګ اصل سبب چه اشغال دی له منځه یوړل شې.

# په افغانستان کې

## د اشغال د بقاء عامل څوک دي؟

ليکنه: جواد



په افغانستان کې میشت بهرني پوځیان خپل شتون ته په اصطلاح له تروریزم سره د مبارزې تر نامه لاندې دوام ورکوي او وایي چې تر څو له افغانستان څخه نړۍ ته د تروریزم تهدید نه وي ختم شوی دوی به په افغانستان کې موجود وي.د کابل د نظام پلویان بیا د بهرنیو پوځیانو د شتون د دوام عامل په افغانستان کې روانه جګړه او طالبان ګڼي او وایي چې تر څو طالبان له جګړې څخه لاس وانخلي بهرني پوځیان به په افغانستان کې شتون ولري او که طالبان جګړه بس کړي بیا به په افغانستان کې د بهرنیو پوځیانو شتون ته ضرورت پاتې نشي او موږ به په جرئت ورته ویلای شو چې زموږ له خاورې څخه ووزئ.

خو پوښتنه دا ده چې پورتني توجیهات حقیقت لري او که د افغانستان او نړۍ پر ولس دبهرنیو پوځیانو د شتون د منلو لپاره یو جوړ شوی پروپاګند دی؟

که د موږ د الله جل جلاله سپیڅلي کتاب قرآن کریم ته په دې اړه مراجعه وکړو او فیصله ترې وغواړو نو په ښکاره راته وایي چې تر څو تاسو له خپل دین څخه وانه ړوي تر هغو به کافران له تاسو سره جنګ ته دوام ورکوي، لکه څنګه چې الله جل جلاله په قرآنکریم کې فرمایي:

﴿ وَلَا يَزَالُونَ يُقَاتِلُونَكُمْ حَتَّى يَرُدُّوكُمْ عَنْ دِينِكُمْ إِنِ اسْتَطَاعُوا ﴾ [سُورَةُ البَقَرَة : ٢١٧]

ژباړه" – هغوی به ستاسې سره تل په جنګ اخته وي، ان تر دې چې که یې وس ورسیږي، نو تاسې به له دې دین څخه واړوي"

په نني عصر کې له مسلمانانو سره د کفارو جنګ یوازې نظامي جنګ نه دی بلکه دوی د جنګ له مختلفو ډولونو څخه په استفادې له مسلمانانو سره جنګ کوي همدغه راز له دین څخه اړول یې هم په دې ډول نه دي چې یو څوک په زور سره عیسوي کړي ، یا یې یهودي کړي او یا یې ملحد کړي بلکه د

دوی کوشش دا وي چې د یو مسلمان باور په اسلام باندې صفر تـه ورسـوي او تش په ژبه مسلمان پاتې شي. بناءً ویلای شو چې که طالبان جګړه بس هم کړي تر څو چې د امریکایانو ګټې پکې وي زموږ په خاوره کې به خپل پوځي شتون او اشغال ته دوام ورکوي.

بله دا چې د اشغال عامل هغـه څـوک بلـل کیـدای شي چـې امریکایـان او ملګري یې له روم ، قبرس، پیښور او کولاب څخه د طالبانو د حکومت د ړنګولو او واک ته د رسیدلو په خاطر د افغانستان اشغال ته رابلل، تـل بـه لـه لویـدیځو ډیپلوماتانو او استخباراتي سازمانونو سره په تماس کې ؤ، لویدیځو هیوادونو تـه به یې په یوه او بل نامه سفرونه کول، په افغانستان کې حـاکم وضـعیت بـه یـې داسې ته ورته تعبیراوو تا به ویل چې ټول لویدیځ به په یوه ورځ چپه کړي.

همدغه راز د افغانستان د اشغال او د اشغال د دوام عـاملین هغـه څـوک بلل کیدای شي:

د زورورو متو په برکت یې امریکا افغانستان اشغال کړ. په افغانانو یې لـه امریکا څخه د لویو بمونو د اورولو هیله کوله.

هغه څوک چې څلورویشت ساعته په امریکایانو پهره وي او که امریکایـان له کوم تهدید سره مخ کیږي مقابلې ته یې لومړی دوی وردانګي، امریکایان یې په منځ کې دوی یې مخ او شاته روان وي.

هغه څوک چې په خپل مـنځ کـې دومـره پـه زړونـو سره پاخـه دي چـې د امریکایانو له شتون څخه پرته یوه ورځ هم آرام وخت نشي سره تیرولای او د یو بل وینې زبیښلو ته ډیر بې صبره دي.

هغه څوک چې د امریکایانو د پوځي شتون په سیوري کې په اداري فسـاد کې تر غوږو پورې غرق دي او د خپل ولس د ځمکو او ملکیتونو د غصب زمینه ورته برابره شوې.

هغه څوک چې د جهاد نارې یې وهلې، د اجتهاد دعوه یې کوله ، په خپلـو اسلافو یې نیوکې کولې خو د مبارزې د سختیو تاب یې رانه ووړ، امریکایانو تـه یې د تنزل لاره خپله کړه او اوس په پټه د هغه چا په وړاندې چې له اشغال سره په مقابله بوخت دي له اشغالګرو سره توطیې او دسیسې جوړوي.

طالبان د افغانستان د اشغال عامـل نـدي ، کـه یـو څـوک لـه هغـو عـرب مهاجرینو څخه چې امریکا د یوولسم سپتمبر په حمله کې ښکیل بلل د طالبانو ملاتړ د امریکایانو د اشغال عامـل ګڼـي، دوی اشتباه کوي ځکه یو خو هغه عـرب مهـاجرین لــه طالبــانو څخــه دمخــه افغانســتان تــه راغـلي ؤ، بــل دا چــې امریکایانو له قیـد او شرط څخـه پرتـه د خپلو غوښتنو منل غوښـتل او د جنجـال د حل په موخه یې د طالبانو وړانـدیزونو ته هیڅ غوږ نه نیوه او بله دا چې طالبان د خپل اسلامي او ملي مکلفیت له مخې مجبور ؤ چې امریکا ته د دوی له مطلق سپارلو او یا د امریکا په غوښـتنه د دوی په وړاندې له اقدام څخـه انکـار وکـړي. که د طالبانو پر ځای هغه مهال د هر چا حاکمیت وای او ځـان تـه یـې ریښـتونی مسلمان ویلای حتماً به یې د طالبانو پـه څیر موقف خپلاوه.

د امریکایـانو د اشـغال دوام هـم د طالبـانو روانـه مبـارزه نـده کـه طالبـان جګړه بس هم کـړي تـر څـو چـې ځینـې افغانان پـه افغانسـتان کـې د امریکایـانو شتون یـوه اړتیـا ګڼـي او لـه خپـل ولـس څخــه د امریکایــانو دفــاع کــوي او د امریکایانو پر ځای د اشـغال د سـاتنې او بقاء په لار کې قرباني ورکوي امریکایـان به حتماً داسې یو کـم قیمتـه اشـغال تـه دوام ورکوي او کله به هم له افغانسـتان څخه په خپله خوښه وتلو ته زړه ښـه نـه کړي.




# د ترکيې انتخابات

# او پکې د طیب اردګان بریالیتوب

حسن مومند

د اسلامي نړۍ خو رامهم هېواد ترکيې کې په تازه ترسره شویو ولسمشر-یزو انتخاباتو کې یو ځل بیا طیب اردګان د۵۲،۳۸ سلنه رایو په اخستلو ګټونکی اعلان اودراتلونکو ۵ کلونو لپاره دترکيې منتخب ولسمشر شو؛ داد ترکيې نه بلکې دټولې جمهوري نړۍ یواځنی مشر دی چې په مسلسل پنځم ځل په انتخاباتوکې بریالیتوب ترلاسه کوي او له دې لارې دهېواد مشري ورپه برخه کېږي.

دیادولو وړ ده چې طیب اردګان یواځې دخپلوپلویانواوخپل ګوند پرمټ پورتنۍ رایې ندي ترلاسه کړي بلکې بریالیتوب یې دملي حرکت په نوم دترکيې مشهورنیشنلست ګوند سره داتحادپه نتیجه کې یقیني شو ؛ دې ګوند۳،۱۱ رایې ترلاسه کړې اوعدل اوپرمختګ ګوند سره داتحاد له امله یې خپلې دا رایې طیب اردګان ته ورکړې چې په نتیجه کې یې دطیب اردګان رایې د۵۰سلنې نه واوړېدې اوبریالی اعلان شو او انتخابات دوهم پړاو ته لا نړل .

تېر کال چې په ترکيې کې دصدارتي نظام دنفاذ لپاره ټولپوښتنه رامنځته شوې وه په هغه ټولپوښتنه کې هم دې ګوند دصدارتي نظام په حق کې رایه ورکړې وه چې ورسره دصدارتي نظام دغوښتونکو رایې ۵۱،۵ ته رسېدلې وې او دنیمایې نه دفیصدۍ داوړېدلو له امله طیب اردګان دټولپوښتنې فاتح ګرځېدلی و .

داوسنوولسمشریزو سره یوځای پارلماني انتخابات هم ترسره شول چې پکې دطیب اردګان ګوند په ٦سوه چوکیو کې ۲۹۵ چوکۍ وګټلې او اتحادي ګوند یې ۴۹ چوکۍ ترلاسه کړې چې پدې سره په پارلمان کې هم دطیب اردګان ګوند اواتحادي ګوند یې داکثریت نه برخمن او ددې جوګه شول چې خپل لومړی وزیر راولي ؛ خو داچې نظام صدارتي شونودکابینې غړي به دپارلمان نه بېرون اخستل کېږي اوکه دپارلمان له غړو نه کوم یود کابینې رکن ګرځي نود پارلمان دغړیتوب نه به استعفا ورکوي .

دترکيې دولت ادعا کړې چې پدې انتخاباتو کې درایو ورکولو وړ ۸۷ فیصده ترکانو خپلې رایې کارولې دي ؛ که د دولت ادعا سمه وي نودا دومره ستره اومثالي فیصدي ده چې ساری یې د امریکا او اروپادکوم هېواد په انتخاباتوکې هم نه لیدل کېږي .

دا انتخابات چې پکې دترکيې ۵٦ ملیونه وګړو شرکت وکړ دترکيې په ۹۵ کلن جمهوري تاریخ کې ځکه ترټولو خورامهم انتخابات و چې دترکيې دسیاسي نظام دتبدیلۍ پرېکړه د همدې انتخاباتو پورې تړلې وه ؛دطیب اردګان دبریالیتوب په صورت کې دترکيې سیاسي نظام ولسمشریز کېدونکی و او د نه بریالیتوب په صورت کې یې پارلماني کېدل یقیني و.

دمحترمولوستوالو په علم کې به وي چې په ترکيې کې سیاسي نظام پارلماني و ؛ طیب اردګان چې په پارلماني انتخاباتو کې درې کرته په پرله پسې ډول بریالی اوخپلې درې واړه قانوني دورې یې پوره کړې اود ولسمشرۍ دخپلو درې واړو قانوني دورو دپوره کولونه پس ۵ کاله وړاندې دترکيې په ولسمشریزو انتخاباتو

کې يې خپل ځان کانديد کړ او انتخابات يې وګټل نوغوښتل يې چې دترکې پارلماني نظام په صدارتي نظام تبديل شي ؛ ددې لپاره دتېر ۲۰۱۷ م کال په اپريل مياشت کې په ترکې کې يوه ټولپوښتنه رامنځته شوه چې ۵۱،۴۱ سلنه ترکانو دصدارتي نظام په پلوۍ او ۴۸،۵۹ سلنې يې په خلاف رايې ورکړې وې.

دترکې په اوسنو انتخاباتو کې ٦ کانديدانو برخه اخستې وه چې ترټولو ځواکمن کانديد پکې ٦۴ کلن طيب اردګان و،ورپسې دکمال اتاترک په لاس دجوړشوي ريپبلکن پيپلز ګوند مشر محرم اينجه وچې ۳۰،٦سلنه رايې ،يې ترلاسه کړې .

دريم مقام دکردانو د۵ سياسي ګوندونودشريک کانديداود پيپلز ديموکراتيک ګوند مشر صلاح الدين دمرتاش دی چې ۸،۴ سلنه رايې ، يې ترلاسه کړې ؛ نوموړي د ۲۰۱٦ م کال په ولسمشريزو انتخاباتو کې هم د ۹،۷۷ رايو په اخستلو دريم مقام ګټلی و او په ۲۰۱٦ م کې دناکامې فوځي کودتا نه پس دفوځ سره دمرستې او د باغي ګوند P.K.K سره دروابطو په تور زنداني شوی هم و.

څلورم مقام دنشنلسټ ګوند حزب الخير دمشرې ميرال آکشنر نومې هغې مېرمنې دی چې په ۱۹۹٦ او۹۷ کلونوکې يې د کورنيو چارو دوزيرې په حيث دنده لرله اوپه اوسنو انتخاباتو کې يې ۷،۳ سلنه رايې ترلاسه کړيدي .

دسعادت ګوند مشر کرم الله اوغلود ۰،۹ سلنې رايو په اخستلوپنځم مقام ترلاسه کړی او دوغو برينجک د ۰،۲ سلنې رايو په اخستلوشپږم مقام ته رسېدلی .

په ۲۰۱٦ م کال کې دلويديځ په لمسون دترکې فوځ دبغاوت په ترڅ کې دطيب اردګان دوژلواودهغه داداري دړنګولو هڅې وکړې خو ولس ستره قرباني ورکړه ؛ دخپل فوځ په وړاندې ودرېدل اوداشوم پلان يې ناکام کړ .

ددې ناکامۍ نه پس دلويديځ ټولې رسنۍ دطيب اردګان پرضد تبليغاتو کې اخته شوې ؛ دبرتانې ډيلي ميلز او ګارډين ټايمز او دامريکاد نيويارک ټايمز او واشنګټن پوسټ اودالمان د الجيمين ژي ټنګ اودفرانسې لی مونډلی فيګارو په څېر مشهورو ورځپاڼوبه په مسلسل ډول داتبليغات کول چې دطيب اردګان په اداره کې ډېر ستر اداري فساد روان دی ؛ طيب اردګان غواړي چې په ترکې کې دجمهوري نظام پر ځای شاهي نظام قايم کړي اوسيکولر ترکيه په اسلامي ترکې بدله کړي ؛ دې تبليغاتو په بهرنړۍ کې او هم دننه په ترکې کې دطيب اردګان اودده دګوند په اړه دخلکوپه ذهنونوکې شکوک اوشبهات پيدا کړي اومحبوبيت ته يې تر ډېره حده تاوان هم رسېدلی ؛ خولويديځ چې پدې پوچو تبليغا دهغه شهرت اومحبوبيت ته هغومره تاوان رسول غوښتل چې په نتيجه کې يې په انتخاباتوکې دناکامۍ سره مخامخ شي پکې بريالی نه شواويوځل بيا ترک ولس همدا طيب اردګان دخپلې مشرۍ لپاره منتخب کړ .

طيب اردګان په ۱۹۹۴ م کال کې داستنبول دښاروال په صفت دکار پيل کولو نه دسياست ډګر ته راووت دېې سارې ښه خدمت له امله يې په ټول هېواد کې ښه شهرت ترلاسه کړ .

هغه لا داستنبول ښاروال وچې په يوې عامې ولسي غونډې کې يې دترکې دنامتو شاعر ضياءکوګل يوه انقلابي رباعي وويله چې همدا رباعي دهغه دزنداني کېدولامل شوه .

ددې رباعي حاصل دا وچې جوماتونه زموږ فوځي چونۍ دي ؛ دجوماتونومنارې زموږ توغندي دي ؛ ګنبتې يې زموږ ټانکونه دي اودجوماتونولمونځ کونکي زموږ لښکر دی ؛ جنګ به همدا موږ ګټو.

داربـاعي دسيکولرفوځي مشرانو لپاره دزغم وړنه وه ځکه چې پدې رباعي کې نغښتی فکر ددوئ په لاس دجوړ شوي سياسي نظام لپاره خطر و نو ځکه يې دده پرضد نظام ته دنه وفادارۍ دوسيه جوړه کړه اوپه ۱۹۹۹م کال کې د ۴مياشتولپاره زنداني شو اودټول عمر لپاره دهغه په سياسي فعاليت بنديز ولګېدلو چې دا بنديز بيا په ۲۰۰۳م کال کې پارلمان له منځه يوړو اولومړي وزارت ته يې لار بربره شوه .

دطیب اردگان دزنداني کېدلو لامل په عامې غونډې کې دهغه یاده رباعي وه خوپه خپل ولس کې دهغه دشهرت اومقبولیت لامل دهغه داربـاعي نـه بلکې دهغه خدمت دی .

دزندان نه دراوتلونه لږه موده پس په ۲۰۰۱ م کال کې طیب اردگان دعدل او پرمختگ گوند بنسټ کېښود چې د۲۰۰۲ م کال په ترسره شویو پارلماني انتخاباتو کې یې ترټولو زیاتې رایې ترلاسه او هغه دهېواد منتخب لومړی وزیر وگرځېد؛بیا د ۲۰۰۷ م او ۲۰۱۱ م کلونو په انتخاباتو کې هم بریالی او په دوهم او دریم ځل هم دهېواد دلومړي وزیر شو.

د ۲۰۱۴ م کال په ترسره شویو ولسمشریزو انتخاباتو کې هم بریالی او دهېواد ولسمشر شو او اوس دادی د ۲۰۱۸م کال په ترسره شویو تازه انتخاباتو کې هم بریمن او په دوهم ځل دهېوادمنتخب  ولسمشر وگرځېد.

دطیب اردگان دحاکمیت په تېرو ۱۷ کلونو کې ترکې په ټولنیز،ښوونیز،سیاسي او اقتصادي ډگرونو کې ډېر ستر پرمختگونه وکړل؛ددې پرمختگونو ترڅنگ په ترکې اسلام هم ډېر وړاندې ولاړ او دکمال اتاترک او دهغه دپیروانوله لوري داسلام ضد ډېر قوانین لغوه کړای شول چې داقتصادي اوسیاسي پرمختگونو ترڅنگ په ترکې کې اسلام او اسلامي لارښوونو ته وده ورکول هم دطیب اردگان دمحبوبیت لامل شوی او په هرو رامنځته شوو انتخاباتو کې  ورته دترکې مسلمانانو زیاتې رایې ورکړیدي.

طیب اردگان دواکمنۍ په تېرو وختونو کې په ترکې کې دستر اقتصادي انقلاب راوستلو لپاره پلان جوړ کړی او ددې لپاره یې د ۲۰۲۳ م کال هدف گرځولی دی.

طیب اردگان په ترکې دتېلو دلټون لپاره ډېرې سترې اداري فعالې کړیدي؛دترکې نه اروپا ته دغازو دانتقال لپاره یې د TANAP په نوم دپایپ لاین غزولو په سترې پروژې کار پیل کړیدی؛په ترکې کې یې دوسلو جوړولو داسې سترې فابریکې جوړې کړې چې پکې جنگي هلیکوپترې،ټانکونه او بې پیلوټه الوتکې جوړېږي؛ په هېوادکې یې دموټر جوړولو گڼې فابریکې جوړې کړې دي او دمعادنو دلټون لپاره یې هم گڼې پروژې رامنځته کړیدي ؛همدا راز یې په استنبول کې دنړۍ ترټولو ستر هوایي ډگر جوړ کړ چې دافتتاح لپاره یې تیاری روان دی او امېد دی چې ډېر ژر به افتتاح کړای شي.

پرترکې کې سیاحت ته هم ډېره وده ورکړل شوه او بهرنو پانگوالو ته ډېرې اسانتیاوې برابرې شویدي چې ورسره بهرنۍ پانگونه زیاته شویده.

دطیب اردگان نه پس دهغه ترټولو لوی سیال او مقابل لوري دکمال اتاترک په لاس دجوړ شوي ریپبلکن پیپلز گوند مشر محرم اینجه دی چې  په سیکولر او نیشنلستانو ترکانو کې یې ډېر مقبولیت ترلاسه کړیدی؛هغه به دولسمشریزو انتخاباتو دکمپاین پرمهال په موټر سایکل گرځېدو او قوم پرستۍ ته دترکانو دهڅولو لپاره به یې ډېر مؤثر تقریرونه کول ؛ دطیب اردگان اودده دگوند پر ضدبه یې ډېرې دنفرت نه ډکې بیانې ورکولې او داناره به یې پورته کوله چې دترکې دپرمختگ لپاره ددرې نیم ملیونه شامیانو ویستل او په ترکې کې پارلماني سیاسي نظام راوستل اړین دی .

دیادولو وړ ده چې دعثماني خلافت دړنگېدونه پس دترکې په ۹۵کلن تاریخ کې به داړومبی ځل وي چې ټول واک د ولسمشر لاس ته ورځي، ددې نه پس به ددولت دوزیرانو، دمحاکمو دقاضیانو دولایتونو دوالیانو او دفوځ دجنرالانو دعزل او نصب ټول واک او اختیاردولسمشر په لاس کې وي او لومړی وزیر او پارلمان به پدې ټولو کې بې واکه  وي چې اسلامیتوب ته دترکې په بوتللو کې به دطیب اردگان په وړاندې خنډونه تر ډېره حده له منځه ولاړ شي او دلویدیځ نه داسلامي نړۍ پرلور د ترکې دقبلې را اړولو کې چې په تېرو ۱۷ کلونو کې طیب اردگان دکومو مشکلاتو سره مخامخ و او دلومړي وزارت په خپلو ۳ وارو دورو کې یې په رفع کولو

نه و توانېدلې اوس به يې په رفع کولو قادر شي يا به پکې تردېره حده کموالی راشي او طيب اردګان چې په ترکې ديو لړقوانينو بدلول غوښتل خو دلومړي وزارت په خپلو ۳ واړو دورو کې پرې نه وتوانېدلی او س به په ډېرې اسانۍ ددې قوانينو په له منځه وړلو او دنويو قوانينو په نافذولو وتوانېږي.

دا خبره هرچاته روښانه ده چې دترکې بهرنۍ پالیسي دکمال اتاترک او دهغه دوفادارو ځای ناستو له لورې دجوړو شويو دغلامۍ نه ډکو قوانينو تابع ده چې داسرائيلو په رسميت پېژندل او دناټو سره دترکې الحاق يې واضحه بيلګې دي.

دطيب اردګان دڅرګندونو نه داسې ښکارېده چې ددې دواړو خبرو خلاف و؛دايې دترکې ناکامه بهرنۍ تګلاره ګڼله او غوښتل يې چې له دې دواړو خبرو ترکيه ازاده شي خو دترکې د نافذه قوانينو له مخې هغه دخپل۱۷کلن حاکميت پرمهال دخپل زړه دا غوښتنه پوره نه شوه کړای او نه يې هم پدې اړه کوم جدي قدم پورته کړ؛اوسنو انتخاباتو کې دبرياليتوب نه پس طيب



اردګان کولی شي چې په قوانينو کې دتغير او تبديل راوستلو له لارې دترکې دمسلمان ولس او داسلامي قوانينو دغوښتنو سره سم دترکې بهرنۍ پالیسي برابره کړي؛ پدې سره به دلويديځ نه دترکې لرې کولو او اسلامي نړۍ ته دترکې دنزدې کولو په لار کې پراته ټول خنډونه له منځه ولاړ شي.

نو همدا لامل دی چې امريکا او نور لويديځ په هيڅ صورت دطيب اردګان برياليتوب نه غوښتلو او دده دناکامولو لپاره يې ښه په خلاص مټ دده دمخالفينو سره مرستې کولې او په غربي رسنيو کې دطيب اردګان پرضد ډېر زيات منفي تبليغات کېدل خو هېواد او ملت ته دطيب اردګان خدمتونه دومره زيات او ښکاره وو او دده نه دولس ملاتړ دومره قوي وو چې دلويديځ ښه ډېرو لګښتونو او منفي تبليغاتو هغه ته هغومره تاوان ونه شو رسولی څومره چې لويديځ غوښتلو.

اردګان دخپل حاکميت په تېرو ۱۷کلونو کې دنړۍ پر کمزورو مسلمانانو دروانو ظلمونو پرضد تل اواز پورته کړيدی؛ دمسلمانانو دړومبۍ قبلې دستونزې دحل لپاره يې په يومېز د اسلامي هېوادونو دمشرانو دراجمع کولو هڅې کړيدي او داسلامي هېوادونو ترمنځ داختلافاتو او جنګي فضا دختمولو لپاره يې هم تل قدمونه پورته کړيدي چې دا ټول کارونه هم دده سره دلويديځ ددښمنۍ سبب ګرځېدلی دي.

په اوسنو انتخاباتو کې دطيب اردګان بریالیتوب پدې هم زیات مهم دی چې واکمني به يې د ۲۰۲۳م کال پورې دوام وکړي؛دا به هغه کال وي چې به پکې دلوزين بدنام تړون وخت پای ته رسيږي او له دې وروسته به ترکيه په صحيح معنو کې ازادي ترلاسه کړي ؛دعثماني خلافت دړنګېدو نه پس کا بو ۹۵ کلونه وړاندې دغرب سره درامنځته شوي دې تړون له مخې ترکيه په خپل هېواد کې تېل او غاز نه شي راويستلی او دترکې دباسفورس نومې عالمي سمندري ګزرګاه نه دتېرېدونکو سمندري جازونو نه ترکيه هيڅ ډول ټيکس نه شي اخيستی.

امريکا اونورلويديځ غوښتل چې دطيب اردګان په مقابل کې کوم کمزوری کانديد بریالیتوب ترلاسه کړي ترڅو ترکيه بيا دغرب لاسونو ته وغورځيږي او ديوکمزوري حکمران په شتون کې دشام دجنګ بل شوی اور ترکې ته هم را داخل کړي او بيا جنګ کې ښکيل کمزورې ترکيه دلوزين تړون غځولو ته اړ کړي خوطيب اردګان په اوسني بریالیتوب دلويديځ دا ټول اميدونه دخاوروسره خاورې کړل ؛ ديوقوي ، ژمن اووفادار مشر په شتون کې به ترکيه ددې جوګه وي چې ښه په جرأت دلوزان تړون له غزولو انکار وکړي اوخپله بشپړه آزادي وساتي .

له دې سترګې نه شي پټېدای چې دتېرو ۱۷ کلونو راهيسې چې په ترکې کې دطيب اردګان په مشرۍ کې دعدل اوپرمختګ ګوند حاکم دی په ترکې کې ډېر اقتصادي ، ټولنيز ، اوسياسي مثبت بدلونونه رامنځته شويدي چې پرې ټول مسلمانان خوښ دي اودلا زياتو مثبتو بدلونو نو رامنځته کېدو هيله لري.

همدا راز په ترکې کې دطيب اردګان پراخه محبوبيت او ددې محبوبيت په نتيجه کې په هرو ترسره شويو انتخاباتو کې بریالیتوب اسلام ته دژمنو ترکانوترڅنګ دنړۍ دمسلمانانو لپاره دخوښۍ خبره ده خوداسې هم نده چې ګيني ترکيه بيخي داسې بدله شويده چې به پکې ډېر ژر اسلامي حاکميت رامنځته شي يابه پکې عثماني خلافت بيا راژوندی شي او د اسلامي نړۍ قيادت به وکړي ؛ دا ښه خواهش دی خو طيب اردګان د انتخاباتو په اوسني کمپاين کې يا له دې وړاندې داسې خواهش ندی ښکاره کړی اونه هم ترک قوم دقوم په حيث دداسې خبروخواهش ښکاره کوي ؛ دترکانو لپاره تر ټولو مهم ترکيه اوترک قوم اوددې دواړو پرمختګ دی ؛ ترکان رايې هم هماغه شخص ته ورکوي چې هېواد او ولس ته ښه خدمت کوي اودطيب اردګان په شمول هر کانديد هم په خپل کمپاين کې دخپل هېواد او ولس پرته بل هيڅ څه ندي ياد کړي .

نوخلک بايد پدې اړه د مغالطو ښکار نه شي اونه دترکې سره له حده زيات امېدونه وتړي؛ ترکيه لا ددې خبرونه ډېره شاته ده اودا لا د ترکې لپاره ډېر لرې منزل دی.

داهم بايد له ياده ونه باسو چې طيب اردګان نه داسې قوي حاکم دی لکه څرنګه چې ګومان کېږي ، نه په ټولې ترکې کې داسې مقبول رهبر دی لکه څنګه يې چې خلک وړاندې کوي اونه يې هم هېواد اودولت دټولوستونزو اومشکلاتو نه داسې خالي دی لکه څنګه چې فکر کېږي بلکې دلته ګڼ مشکلات شتون لري ؛ له يوې خوا دطيب اردګان پر سر دفوځ توره رازوړنده ده ؛ بل لورته قوي اپوزوسيون شتون لري اوددې ترڅنګ دترکې کابونيم ولس هم دده په مقابل کې نوروته خپلې رايې ورکړيدي .

ددې ترڅنګ دترکې دننی اوبهرني سياسي حالت هم پوره اطميناني ندی ؛ سياسي حالت يې ډېرد توجو وړ دی اوپه ډېر احتياط مخ په وړاندې بوتلل غواړي؛ دکردانو ستونزه لا حل نده؛ دعراق او سوريې سره مخ په زيا تېدونکي اختلافات شتون لري اودروسې سره په روابطو کې لا ښه والی او په سيمه کې دترکې قائدانه رول هم دټولو هېوادونو لپاره دمنلو وړ ندی .

دا ټول هغه مشکلات دي چې تر راوتل ډېره هوښيارتيا ، زيرکتوب؛ احتياط، تدبر، ښه فکر او معقول پلان غواړي؛ دابه په راتلونکو پنځوکلونوکې ښکاره شي چې طيب اردګان دڅومره هوښيارتوب نه کار اخلي اوڅرنګه ددې مشکلاتو نه راوځي؟



# اختریز درې ورځیني اوربند

# څو مهمې لاسته راوړنې...

▪ بشیر

دافغانستان اسلامي امارت دمشر تابه لخوا د نیکمرغه کوچني اختر په احترام کې اعلان شوی درې ورځینی اوربند په ټولو ولایتونو او ولسوالیو کې د کامل اطاعت او بشپړ بري وروسته په داسې حال کې پای ته ورسید چې داختر په درې ورځو کې د مجاهدینو لخوا په ټول هېواد کې هسې یو هوایې ډزهم ندی او وریدل شوی

**داوربند موخه :**

د اسلامي امارت لخوا د دري ورځیني اوربند موخه په حقیقت کې پخپل ولس د مهربانی ښکارندوی دی څو ولس داختر په ورځو کې پرته دکوم ډار او بیم څخه اختریزې خوشالۍ ولمانځي او په ډاډمنه فضاء کې وکړای شي چې په ښه ارام او سکون سره داختر لمونځونه ، عبادات او مراسم اداء کړای شي که څه هم دامارت داعلان څخه وړاندې دکابل رژیم مشر- اشرف غني دطالبانو پر ضد داوو ورځو لپاره اوربند اعلان کړ ځیني خلک دا انګیري چې طالبانو داشرف لخوا داور بند په غبر ګون کې درې اوربند اعلان کړ لیکن حقیقت داسې ندی طالبانو ویلي: د دوی لخوا د اوربند اعلان د اشرف غني اعلان ته غبر ګون ښودل او ځواب ندی بلکې بلکې ددوی وړاندې هم خپل مجاهدین دیته متوجه کول چې داختر په ورځو کې د شد ید ضرورت پرته له قصدي او هدفي عملیاتو څخه ډاډه کوي البته داتوپیر شته چې وړاندې یې په اړه کومه رسمې اعلامیه نه خپروله داځل یې درسمې اعلامیې په خپرولو سره درې ورځینی اوربند اعلان کړ

اوس راځو دیته چې د اختریزاوربند اعلان طالبانو ته ګټه ورسوله که ورته په تاوان تمام شو؟ که واقعاً ځیر شو نواوربند دطالبانو په حق کې مثبت رول اداء کړ، دتحریکونو او انقلابونو په اوږدو کې کله نه کله ځینې پیښې یا حادثې دپایلو په اعتبار تاریخي حیثیت خپلوي؛داختر داحترام په مناسبت دامارت مشرتابه له لوري دا ور بند اعلان هم یوې داسې پیښې ته ورته و چې تردې پخواتمه نه کیده، په لومړي سرکې دومره توقع چا نشوای کولی چې دنتایجو او لاسته راوړنو په اعتبار به دامارت او مجاهدینو په خیر تمامیږي! درې ورځینې اوربند یوشمیر هغه پوښتنې هم ځواب کړې چې زما په اند په تیرو اوولس کلو کې په دومره ښه توګه نه وې ځواب شوې په دې علاوه یوشمیر دولسي- خلکو دذهنو نو څخه ګڼ شکوک او شبهات هم وویستل او ورته دطالبانو سپېڅلتیا، ازادي، استقلال، اسلامیت او افغانیت نور هم روڼ جوت شو داوربند څو عمده لاسته راوړنې دادي:

**طالبان یوه ډله ده:**

داجیر حکومت مشر اشرف غني هرځای دا پروپاګند کوي چې دولت یې افغانستان کې دشلو جنګې ډلو سره په جنګ لګیا دی په دې وجه بری نشي مندلی غربي میډیا دهغه دا دروغ په پراخ کوریج سره بدرګه کړل د ډیرو خلکو رښتیا باور راغی چې افغانستان کې په طالبانو سربیره نورې ډلې ټپلې هم شتون لري طالب ویندویانودغه دروغ په کلکه ردکړل چې د افغانستان اسلامي امارت په واحد قیادت کې دامریکا یې اشغال پرضد جهاد دوام لري او په دې بله هیڅ کومه ډله شتون نلري

دافغانستان اویا یاشپیته سلنه خاوره د دوی تـرواک لانـدې ده داشرف غني هدف دا و چې پـه دې دروغ ویـو سره بیـرون تـه دطالبانو یا امارت وزن کم وښیي او ثابته کړي چې امارت دیوې جنګې ډلګۍ نه هاخوا نور څه نلري او په ۳۴ ولایتونـو کـې چـې کومه جګړه روانه ده دا مختلفې ډلې ټپلې دې چې دهغوی لخـوا روانه ده طالب ویندویانو او لیکوالو که هرڅو ددې دروغو په رد کې قناعت بښونکي دلایل وړاندې خوبیا هم ډیـرو نـه منلـه چـې افغانستان کې دومره پـراخ جهاد او مقاومـت دواحـد ( اسـلامي امارت) قیادت او رهبرۍ لاندې روان دی

خو داختـر پـه احتـرام دري ورځینـي اوربنـد اوښـوده چـې اشرف غني دروغجن انسان دی او په ټول هېواد کې روان جهـاد دواحد مشر او رهبر ارحکم لاندې جهاد کوي او داسلامي امـارت پرته بله هیڅ کومه ډله ټپله شتون نلري جوته چې هیواد کې شته مجاهدین یو هدف او یو مسیر لري او دیو امیـر پـه امـارت کـې جهاد کوي هغه ټول تبلیغات چې پـري ملیونونـه ډالـر لګیـدلي وو امارت پخپل مدابرانه ابتکار سره ټول خنسا او شـنډ کـړل او نـن هرڅای هرسړی اعتراف کوي چـې دطالبـانو تـرمنځ کـوم نظـم او اتحاد شتون لري هغه دنړۍ په ډیرو پرمختللـو نظـامونو کـې هـم مثال نلري او اد اشرف غني د دروغو حقیقت خلکـو تـه ښـکاره شوچې هیو دروغجن مشر دی او پخپلو خبرو شرم او خجالـت نـه محسوسوي.

### د طالبانو په لیکو کې بهرنیان نشته :

دامریکا دچوپړسیوري ته روزل شویو پردیپالانو همیش پـه طالبانو دا تور پوري کاوه چې په دوي کې دبهرنیو هېوادو اتباع شتون لري او په افغانستان کې بهرني جنګیالي په جګړه بوخـت او لګیادي چې ترشاه یې دبهرنیو اسـتخباراتي کړیـو لاس دی او په روان جنګ کې ډیر لړ شـمیر افغـان طالبـان دي نـور اکثریـت دبهرنیو هیوادو څخه راغلي جنګیالي دي طالبانو دخپلـو رسـنیزو خدمتونو له لارې دغو تورونـو تـه همـیش قناعـت ښـونکي او غاښ ماتونکي ځوابونه ویلي اوثابته یې کړې ده چې د دوی سره په روان جنګ کې بهرني جنګیالي نشته او یـوائې یـوائې ددې هیواد اصیل بچیان دي چې دامریکا پرضد جهاد کوي او دهېـواد نیږدې شپیته سلنه خاوره یې ترخپلې سلطې لاندې راوستې

ددري ورځیني اوربند په مهال په ښـارونو کـې دطالبـانو علني ظهور او له کابله داسلامي امارت ترواک لاندې سـیموته دژورنا لستانو او یو شمیر ځوانانو په ورتـګ هغـوی تـه ښـکاره شوه چې دطالبانو په لیکو کې دهیڅ کوم هیواد بهرني مجاهدین نشته که وای خامخا به خلکو ته پـه نظـر ورغلـی وو پـه خاصـه توګه اوسنی دور چې دخواله رسینو دور دی پکې په اسانۍ سره کید لی شول چې دبهرنیو مجاهدینو عکسـونه او دهغـوی خبـرې یې بیرون ته ښودلي وای خو حقیقت دادی چې داسـلامي امـارت په لیکو دبهرنیو هیوادو ابتاع شتون نلري دامـارت پـه سـلو سـل کې مجاهدین افغانان او ددې خاورې بچیـان دي پـه دې لـړ کـې دطالبانو ظهور په ټول پروګندونو خاورې واړلې چا یـو خـارجي مجاهد ونه لیده چې هغه دي دبل کوم هیواد څخه راغلی وي دلته دي پـه جګـړه بوخـت وي چـې دا پـه نشرـاتي او سـیاسي لحـاظ دامارت لپاره یوه دپام وړ بریاده چې د درې ورځینـي اوربنـد پـه اوږدو کې ترلاسه شوه او خلکوتـه ټـول حقـایق پـه سـمه توګـه روښانه شول .

### دولس لخوا د طالبانو بیساري تود هرکلی :

څنګه چې طالبان او مجاهدین ددې پیړۍ ترټولـو زړور او باتور قشردی هغوی دالله تعالی پرته له بل هیڅ ځواکه ډار نلـري ، دد رې ورځیني اوربند نه په ګټه په ځینو ولایتونو او ولسوالیو کې هغوی ښارونو ته ولاړل هلته دعامو خلکو سره د داختـر پـه خوښیو او خوشالیو کې شریک شول په مقابل کـې طالبـان چـې دولس لخوا په کوم تاریخي هرکلي ویلو استقبال شول له امله یې دهغو خلکو زړونه ټق وچاودل چې ګومـان یـې کـاوه طالبـان لـه ولس څخه تجرید شوي او په ولس کې یـې خپـل مقبولیـت لهـل اسه ورکړی دخلکو تاوه هرکلي اوښوده چې طالبـان او مجاهـدین په ولس کې ژورې ریښې او محبووبیت لـري خلـک لـه زړونـه

دطالبانو سره مینه لري دغه وه چې طالبان هر ښارته لاړل هلته دهغوی په لیدلو دخلکو له سترګو اوښکې بهیدې او طالبانو ته یې په غاړوکې ګلان ور اچول وسره عکسونه یې ویستل په دې کار کې په خاصه توګه دځوان او باسیواده قشر سلنه زیاته وه هغوی طالبان دالله اکبر او داسلامي امارت زنده باد په نارو بدرګه کول په خواله رسنیو کې یې دطالبانو عکسونه او ویډیو ګانې نشرولې چې دکتونکو په اند دا کار په ولس کې دطالبانو دمقبولیت نښه ده څه موده وړاندې ښاغلی حکمتیار کابل تسلیم ورغی هغه ته هیڅکله په دومره مینه او جذبه خلک راوتل یواځې په څو ځایونو کې خپلو ګوندي کسانو ورته دلاسو چکچک کاوه او دلته دطالبانو رهبري نه؛ دطالبانو مشران نه؛ عام عادي طالب یا مجاهد چې چا ته دهغه نوم هم معلوم نه وو یواځې په دې چې هغه مجاهد یا طالب دی په تود هرکلي سره بدرګه شو دا په ولس کې دطالب دمقبولیت ښکارندویه دی او جوتوي چې ولس دطالبانو له مبارزې ملاتړ کوي او دخارجي یرغلګرو څخه کرکه او نفرت لري

### د طالبانو بیرته ستنیدل.

داور بند دپای ته ر سیدو سملاسي طالبان له ښارونو څخه بیرته خپلو سنګرونو ته ستانه شول او داسې ستانه شول چې چیرته یوطالب چا ونه لیده چې هغه دمشرانو له حکم څخه په سرغړونه کولو د دولت تر واک لاندې سیمو کې پاته شوی وي یا خدای مکړه درژیم سره یوځای شوی وي دا کار که پلو ته دطالبانو دننه دکامل اطاعت او دخپلو مشرانو د لارښوونو دپیروۍ روحیه په ډاګه کوي بل پلو ښیي چې طالبان هغسي چې ګومان کیده له جهاده ستړي ندي پخپله مبارزه پښیمانه ندي هغوی خپل هدف ته ژمن دي چې ددې بیلګه شاید دنړۍ په ډیرو پوځیانو کې هم پیدا نشي په دې علاوه ښکاره شوه چې طالبان دکرایي پوځیان ندي بلکې دا هغه مخلصین دي چې داعلاء کلمة الله لپاره سرونه قربانوي هیڅ دنیاوي لالچونه او اغراض نلري او هرچې دنورو هیوادو جنګیالي او عسکر دي هغوی دمعاشونو لپاره جنګ کوي چې معاش ورته ورنکړل شي یوه ثانیه هم په سنګر ګې نه تیروي ددې څخه یو هېواد هم مستثنی کیدای نشي امریکا که هرڅو شتمن او ځواکمن هېواد دی چې خپلو عسکروته معاشونه ورنکړي پوځیان یوه دقیقه هم په جګړه کې نه پاته کېږي او امارت هغه ځواک دی چې مجاهدین اوپوځیان دهرډول لالچ او عوض ترلاسه کولو پرته دخدای پالنې په سرشاره جذبه مست دي او ددې ټولو څخه بې پروا دي هم دا علت دی چې دیو پنځوس هیوادو راغلي ځواکونه دبې وسلې طالب په وړاندې مات شول او زوړند سرونه بیرته لاړل او ډیر ژربه که خدای داشته یرغلګر هم دطالب په وړاندې خپل شکست مني او په تیښته به له دې هیواده به وځي داځکه چې طالب رښتینی دی مفادپرست او قدرت طلب ندی یواځې او یواځې دخپل هېواد ازادې او دخپل رب درضا لپاره جهاد کوي او بس !

## د ۲۱ پیشوګانو قاتل
## په ۱۶ کاله بند محکوم شو!

د امریکا په کالیفورنیا ایالات کې هغه ځوان چې ۲۱ پېشو ګانې یې وژلې وې د محکمې لخوا په ۱٦ کاله محکوم شو. دغه کس «روبرټ روی فارمر» نومیږي، چې تیر کال یې په دې اعتراف وکړ، چې د کالفورنیا په سان خوزې کې به یې پیشوګانې غلا کولې او بیابه یې وژلې.

په یاده سیمه کې د ۲۰۱۵ ز کال د سپټمبر راهیسې د پیشوګانو ورکیدل پیل شول، چې د لومړۍ ددوه پیشوګانو جسدونه هم وموندل شول. نوموړی کس د یوې نظارتي کمرې د ویډیو له مخې پیژندل کیږي او وروسته د ده په موټر کې په وینې لړلي دستکشونه موندل کیږي.

محکمې پرېکړه کړې، چې نوموړی به تر ۱٦ کلنو زندان وروسته هم ۱۰ کاله د دې حق ونلري، چې پیشوګانو ته ور نږدې شي. خو د امریکا یو سرتیری په افغانستان کې ۱۸ بې ګناه کلیوال شهیدانوي، د هغه محکمه رد کیږي.



محمد ـ عزم

# د صفریک (۰۱) قطعه چا

# او د کوم هدف لپاره جوړه کړې

په هیواد کې د کابل د مزدورۍ ادارې په نظامي اُرگانونو کې په عام وژنه او وحشت خپراوي کې همدا صفر یک (۰۱) قطعه ځانگړی نوم لري .

اهداف ورته بهرنیان ورکوي، موخه یې افغان وژنه ده.

د هیواد ستر شخصیتونه، لکه عالمان، شیوخ او عام مشران په شهادت رسوي

مسجدونه بمباروي، د عامو خلکو په کورونه چاپې او بمبارونه ترسره کوي

چې بیلگې بې ساري دي لکه: ننگرهار، لوگر،کندوز، پروان او میدان وردگ ولایتونو کې یې زیات جنایونه تر سترگو کیږي .

په نرخ ولسوالۍ کې یې په یوه دیني مدرسه بمبار چې پکې میشت تر ۲۰ کسانو پورې طالب العلمان په شهادت ورسول .

لوگر کې د یو کور ۲۸ غړي په بمبار کې په شهادت رسول .

میدان وردگ تنگي کې د عامو خلکو کورونه ویجاړول، میدان کې یو مسجد بمبارول پکې میشت لمونځ کونکي شهیدانول په ننگرهار کې مدرسه په بمونو الوزول.

په کندز کې په دستاربندي بمبار سلگونه ماشومان او زده کونکي شهیدان

پروان کې په مدرسه د ولسيـ خلکو په کورونو او مسجدونو بمبار یې ښکاره بیلگې دي

د دوئ دا وحشتونه او جنایتونه ولس ته د منلو ندي او نه به دوئ وبښل شي.

د عامو کلیوالو ځورونه او د هغوی وهل ټکول د دوی اصلي دنده ده .

دوی په وحشت خپرولو کې ځانگړی مهارت لري.

اصلا دوئ د دیني اساساتو له منځه وړلو په پار استخدام شوي دي.

تر صلیبي یرغلگرو وروسته دوی هر ځای دیني مقدسات تخریبوي، او د دین خادمان په شهادت رسوي،

په مداریسو ړندې بمبارۍ کوي او د مسلمانانو دیني مجالس بمباروي.

اوس هم طالبان په ټول هیواد کې د دوئ د پلانونو د شنډولو په پار تاکتیکونه بدلوي تر څو دا ولس د دوئ له شره په امان شي

د دوی د عملیاتو څخه وړاندې مجاهدینو ته خپل استخباراتي کړۍ راپور ورکوي تر څو د دوی لپاره ځمکه په ماینونو فرش وگرځوي کمینونه ورکړي او په دوی مخامخ تعروضونه پیل کړي لکه په ننگرهار، وردگ او فاریاب ولایتونو کې چې یې بې ساري د سر تلفات ولیدل.

یوه میاشت وړاندې د ننگرهار ولایت خوږیانو ولسوالۍ زاوې نومې سیمه کې د مجاهدینو په مرکزونو د دوی عملیات وه چې مجاهدین مخکې ترمخکې خبر وه او سخت غبرگون یې ورته وښوده چې تر ۱۱ زیات عسکرو ته یې مرگ ژوبله واړوله.

څو ورځې وړاندې په میدان وردگ ولایت کې د دوی په موټریز کاروان لومړی فدایي، بیا د ماین چاودنه او په پای کې د دوی په مورال بایللو عسکرو له نږدې مخامخ تعرضي بریدونه چې تر ۴۰ زیات عسکرو ته پکې مرگ ژوبله واوښته.

یوه ورځ وړاندې د ننگرهار په حصارک کې د دوی سره د مجاهدینو په نښته کې ۱۱ کسانو ته مرگ ژوبله واوښته

دوی دې دېته نه خوشحالیږي چې مونږ به په سیمټي دایوالونو او په ضد مرمۍ موټرو کې بچ شوو

طالبانو د دوی لپاره خپل تکتیکونه بدل کړیدي او ډیر په اسانه کولای شي چې دوی په نښه کړي

طالبان به یی په اړه جدي غبرگون وښایي، او د دوئ د وژلو لپاره به ځانگړي پلانونه طرحه کړي او عملي جامه به ور واغوندي.





# اتلان څوک دي ؟؟

اتلان هغه څوک دي چې د خپل وطن، دين او اسلام دفاع کوي.

د هر طاغوت خلاف ښه په زغرده مبارزه کوي

اوس د کرکټ ځوانانو ته هم خلک اتلان وايي

د افغانستان وګړي د اتلانو سره ډیر زياتی کوي هغه دا چې دلته د کفارو غلامان، ګوډاګيان، اجيران او بلواکه خلک آزاد او اتلان ګڼل کيږي.

خو هغه چې د اشغالګرو خلاف مبارزه کوي کفارو ته لکه سَفْر ولاړ دي هغوی غلامان بلل کيږي

هغه چې د مسلمان عزت، حياء او د ناموس ساتنه کوي هغوی بلواک بلل کيږي، هغه چې زندانونه قبلوي، هغه چې ازادي غواړي، هغه چې خپلواکي غواړي، هغوی ته غلامان وايي .

حالً چې همدغه د نړۍ ستر اتلان دي.

دا هغه څوک دي چې د نړۍ سُفر طاقت يې تر صفر ورساوه .

يو وايي په کرکټ کې يې د اتلولۍ مډال راوړ.

په بوډبال کې يې د اتلولۍ مډال راوړ.

په هنر يا موسيقۍ کې يې د اتلولۍ مډال راوړ.

داسې نور دېته ورته شيان..

خو هيڅ/چا تراوسه ونه ويل چې اسلامي امارت د ازادۍ مډال تر ګټلو ډیر نږدې کړی دی او ډیر ژر به ان شاءالله د الله تعالی په نصرت دغه د ازادۍ مډال تر خپل وطن راورسوي .

تجدون الناس معادن...

تاسو به د خلګو په منځ کې داسې کسان ومومئ لکه معادن...

محدثين كرام د دې حديث شريف په شرح کې ليکي چې د انسانانو مثال هم د معادنو په څیردی، لکه په هغو کې چې د سرو او سپينو زرو قيمتي فلزاتو په شمول نور قيمتي او غير قيمتي فلزات پيدا کيږي همدا شان د انسانانو په منځ کې هم ډیر داسې خلک شتون مومي چې هغه د نورو انسانانو په پرتله ډير اتل وي او پخپل ناموس کلک ولاړ وي.

همداشان معادن چې تر څو يې تفحص او استخراج نه وي شوی د هغوي ماهيت او نوعيت نشي پیژندل کیدای ترڅو داسې ونشي کړای چې اتل څوک دی او غلام څوک دی؟

همدا لامل دی چې د جنګي تاکتيکونو ، استعدادونو ، اخلاقي امتيازونو، نظامي برياوو او فطري مواهبو له لحاظه انسانان يو له بله ډير توپير لري څوک غلام او څوک آزاد ؛ څوک اجير او څوک اتل بلل کيږي .

تاريخ دواړه پخپله حافظه کې ثبت کوي د چا د نوم سره آزاد او د چا د نوم تر څنګ د غلام لقب ليکي.

خو بهر حال د افغانستان په خاوره بلا غلامان او اتلان پاتې شويدي.

شاشجاع ، نجيب ، کارمل ، کرزی او داسې نور ډير زيات غلامان چې تاريخ د دوی د کارنامو په ليکلو شرميږي.

خو بل خوا بيا داسې اتلانو د افغانستان په خاوره واکمني کړيده چې آن تر هند او سيند پورې يې خپل واک او اختيار درلوده.

د افغانستان په اتلانو کې بلا اتلان شتون لري چې د هغوی له جملې دلته مونږ د مرحوم ملامحمدعمر مجاهد رحمةالله عليه په نوم بسنه کوو.

ملا محمد عمر رحمه الله هغه شخص وو چې په افغانستان کې یې غربي تخت وتاج ختم کړ، پاڅکونه یې ړنګ کړل او خپل سري حکومتونه یې ونړاوه.

چې د اتلولي څخه یې لنډې بیلګې دلته راخلو.

کله چې اسامه بن لادن تقبله الله افغانستان ته د ملا محمدعمر مجاهد رحمه الله تر قیادت لاندې خاورې ته پناه راوړه او د ملا محمد عمر سره یې د میلمه په طور ژوند کاوه نو امریکا او صلیبي ایتلاف ونشوو زغملای چې یو خوا دې په افغانستان په خاوره اسلامي امارت قایم وي بل خوا دې زمونږ مخالف الجهته عربان هم هغلته ژوند وکړي.

نو یې د ملا محمد عمر رحمه الله څخه د اسامه بن لادن د سپارلو غوښتنه وکړه

امریکا د ملامحمد عمر رحمه الله څخه غوښتل تر څو اسامه بن لادن امریکایانو ته وسپاري.

خو ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله د هغوی ددې وړاندیز خلاف داسې څرګندونې وکړې چې ټوله کفري نړۍ یې ځانته ګوته په غاښ کړه

ملا محمد عمر رحمه الله ورته وویل چې داسې یو افغان به پیداء نشي- چې یو مسلمان د کفارو په لاس ورکړي.

د یو میلمه په نه ورکولو یې خپل سپیڅلی امارت ړنګ او د تورو غرونو څوکو ته وخاته خو اسامه بن لادن یې امریکا ته ونه سپاره.

# دمفکر عسکرجانه!

## یو څو پوښتنې لرم؟

بریال خوږمن

عسکرجانه هیله مند یم چې مثبت ځواب یې راکړې

عسکرجانه!! څوک وژني او د چا ساتنه کوې ؟؟

عسکرجانه!! د وطن دفاع او ساتنه د کومو خلکو ځینې کوې ؟؟

عسکرجانه ته چې د شپې پهره داري کوي څوک ویده وي؟؟

او ای عسکرجانه کله دې هم دا سوچ او فکر کړیدی چې ته په شپنیو عملیاتو کې د چا کور ته ورځې او د چا د کور دروازې ته بمونه ږدې ؟؟

عسکرجانه نن ورځ چې ته کوم کور ته اوړې دا هم ستا افغان ورور دی د هغه خویندې میندې ته خپلې خویندي وګڼه

که ستا کور ته یو څوک د یو انګریز سره دراوړي نو تاته به څومره زور درکړي او ته به هغه کس بیا پریږدې کوم چې یو کافر ستا د کور په انګړ داخل کړی وو

پوهیږم که چیرته حقیقت ووایې او سترګې پټې نکړې نو زما د پوښتنو په ځواب کې به ووایې چې مونږ غلامان یوو او د بل تر واک لاندې کار کوو

خپل مسلمان او مجاهد ورور انګریز ته په لاس ورکوو

زړونو کې ډیر څه دي خو فکر دې د رب ذوالجلال قرانکریم ته راړووم په هغې عمل وکړم، نور ددغه صلیب دوستي پریږده او د خپل افغان ورور یعنې طالب سره دې د وروری، مینې محبت لاس ورکړه

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَتَّخِذُوا۟ ٱلْيَهُودَ وَٱلنَّصَٰرَىٰٓ أَوْلِيَآءَ ۘ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَآءُ بَعْضٍ ۚ وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَإِنَّهُۥ مِنْهُمْ ۗ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلظَّٰلِمِينَ.

اې مؤمنانو! یهودیان او عیسویان خپل ملګري مه نیسئ، دوی په خپلو منځو کښې سره ملګري دي. او که ستاسي څخه څوک هغوی خپل ملګري نیسي، نو بیا هغه هم په هماغو کښې شمېرل کیږي. په دي کښې شک نشته چې الله ظالمان له خپلې لارښوونې څخه بې برخې کوي.

# امریکایان له اسلامي امارت نه

# کوم ډول سوله غواړي

جمیل میړنی



د کله نه چې امریکا په افغانستان وحشیانه یرغل د صلیبي ایتلاف په ملتیا وکړو د هغوی هدف د اسلامي خلافت ړنګول وه

کله چې صلیبي ایتلاف د افغانستان په سطحه محکم خلافت ړنګ کړ او پر ځای یې دیموکرات نظام پلی کړ .

د ګوتو په شمیر څو مجاهدین وه چې امریکا یې سره د صلیبي ایتلاف د ماتې سره مخ کړه نو صلیبیانو اود هغوی ګوډاګیانو چې د جګړې توان نه درلود نور یې د سولې انګازې خپرې کړې تر څو طالبان د امریکا سره د سولې میز ته کښیني.

امریکایان د طالبانو څخه کوم ډول سوله غواړي ؟؟

که چیرته امریکا وایي چې دیموکرات نظام دې پلی وي او دیموکراسي دې همدغه شان په جوش کې روانه وي طالبان دې سولې ته کښېني.

خو دا هیڅکله نشي کیدلی ځکه د طالب مبارزه د شریعت د نفاذ لپاره ده تر څو د شریعت نفاذ نه وي راغلی تر هغې به دغه مبارزه جاري وي.

طالبان د امریکا څخه سولې ته ډیر لیواله دي ځکه د الله تعالی فرمان دی وَالصُّلحُ خیر " په سوله کې خیر دی

سولې ته لیواله دي خو داسې سولې ته نه چې د سولې تر عنوان لاندې دیموکراسۍ ته تسلیمیدل وي

که امریکا سولې ته لیواله وی نو د طالب مشرانو نومونه به یې په تور لیست کې نه شاملول

له یوې خوا مې په بې پیلوټه الوتکو وژنې، په کورونو مو شپني عملیات ترسره کوې، کورونه مو بمباروې، جنازې دې بمبار کړې مسجد د محراب او ممبر دې د امام سره راته شهید کړ بل خوا راته د سولې نعارې ټنګوې نو څنګه زه د سولې میز ته کښینم .

په افغانستان کې روانه جګړه چا رامنځته کړه او څوک یې ختمونکي دي؟؟

که امریکایان زمونږ هیواد ته نه وه راغلي زمونږ په هیواد کې نا امنیو څه کول خو د طالبانو حکومت حاکم وو امنیت ټینګ وو د مظلوم ملت ژوند ته ګواښ نه وو او د ملت د هر وګړي آه اوریدل کیدو.

هر څوک وایي چې د افغانستان په روان ناورین کې ډیری افغانان ددغې جګړې ښکار شول دواړه طرفه وژل کیدونکي افغانان دي

د کابل فاسده اداره همیشه دا ادعاء کوي چې طالب مشران د سولې مخې ته خنډ دي

او په راډیوګانو، تلویزیونونو، انټرنیټي سایټونو، فیسبوک پاڼو او داسې نور تبلیغاتي چینلونو کې همدغه نعرې او افواهات د ملت اذهانو ته رسوي چې ددې جګړې بنسټ ایښودونکي طالبان دي

حالً چې همدغه د کابل د بلواکې ادارې ناست کارکونکو او مشرانو چې د امریکا پر مټ یې د اسلامي امارت سپیڅلی نظام یې ړنګ کړو.

سلګونه افغانان یې شهیدان کړل، د طالبانو په سرونو یې میخونه ټک وهل زرګونه مجاهدین یې ژوندي د بیلدوزرو په مټ تر خاورو لاندې کړل

نن د افغاني جګړې بنسټ ایښودونکې څوک دي ؟

طالب مشران سولې ته ژمن دي او د سولې غوښتونکي دي د جګړې څخه نور ستړې شوي دي داسې نده چې ماتي یې وخوړه بلکې نه غواړي چې وطن یې کنډر شي.

څنګه زه سوله وکړم چې صلیبي ښکیلاکګر دې زما پر پاکه خاوره کې د اشغال شپې او ورځې سبا کوي او زه دې د سولې تر نامه لاندې د غلامۍ ژوند ته لبیک ووایمه

# پرلتونه د سولې هڅه

## که د نیکولسن د خوب تعبیر؟

# لیکوال: عطاءالله مبارز

له نژدې دوو لسیزو را په دېخوا اشغالگرو او د هغوی داخلي اجیرانو ددوی په وړاندې د ازادۍ غوښتونکو افغانانو د مقاومت مهارولو په پاره ډېرې طریقې وکارولې، د فوځیانو شمېر یې تر لکونو لوړ کړ، څو ځله یې په خپله ستراتیژۍ له سره غور وکړ، له لسو وارو زیات یې د جګړې قوماندې ته تغیر ورکړ.

په مطبوعاتي جګړه کې یې د مجاهدینو او افغان ملت تر منځ د واټن پیدا کېدو لپاره ډېرې دسیسې په کار واچولې، مجاهدین یې د افغان ملت د سوکالۍ او پرمختگ په وړاندې د ستر خنډ په توگه معرفي کړل.

خو له دومره زیات فوځي حضور، بې اندوله جنگي امکاناتو ، د سلگونو ملیارده ډالرو لگښت او پراخ مطبوعاتي پوښښ سره سره یې نه یوازې د افغان ازادي غوښتونکي ملت مقاومت مهار نه کړای شو، بلکې برعکس یې پر وړاندې د هرې ورځې په تېرېدو جګړه پراخیږي او شدت مومي.

په دې وروستیو کې د اشغالگرو قواوو عمومي قومندان جنرال نیکولسن د افغان مقاومت د ځپلو په موخه یوه طرحه وړاندې کړه، چې له مخې یې باید په طالبانو له دیني، ولسي او سیاسي پلوه فشارونه ډېر شي، تر څو د اشغال پر خلاف له پیل کړې مبارزې لاس واخلي.

د یادې طرحې د عملي کېدو په موخه اشغالگرو د افغان حکومت په نمائشي مشرۍ له پراخ رسنیز پوښښ سره هڅې پیل کړې، له دیني پلوه د فشار په برخه کې یې په جاکارتا او کابل کې د دیني عالمانو غونډې جوړې کړې، خو په دومره توپیر چې د جاکارتا غونډه کې د امریکایانو او افغان بې واکه حکومت د غوښتنو خلاف د اسلامي امت په یووالي او د افغان جگړې د اصلي عامل ( اشغال) په له منځه وړلو ټینگار وشو.

او په پام کې ده د همدې هڅو په دوام راتلونکو نژدې ورځو کې سعودي عربستان کې هم ورته غونډه جوړه شي.

د ولسي فشارونو په برخه کې تر ټولو لومړی په ولایتونو کې د تحصن خیمې ووهل شوې او د گوډونوالو مشري یې د حکومت له لوري استخدام شویو په اصطلاح مدني فعالانو کوله.

دوی په خورا سپین سترگۍ د "طالبه جگړه بس کړه موږ سوله غواړو" تر شعار لاندې پرلتونه پیل کړل، د طالبانو له خوا په خورا ښه تدبیر سره د دوی اصلي څېرې ملت ته وښودل شوې او په ځینو ولایتونو کې یې له همدې خیمو دځان په گټه د اشغال پر خلاف غږونه پورته کړل.

همدغه راز ځینو فعالانو د حکومت په غوښتنه او ورکړل شوې برنامه د ولسي حرکتونو تر نامه لاندې پلازمینې کابل ته پلي روان شول، چې تر ټولو مشهور یې له هلمنده روان کاروان و، د یاد کاروان کابل رارسېدو سره سم د پلان له مخې اشرف غني د دوی استقبال وکړ او له هغوی سره یې په دې شرط چې طالبان اوربند تمدید کړي ان د یو کال د اوربند ژمنه وکړه.

د یاد کاروان غړو طالبانو ته د درې ورځو مهلت ورکړ چې د دوی غوښتنو ته د حکومت په څېر مثبت ځواب ووایي.

طالبانو په خورا دقت سره دوی ته ځواب کې وویل چې جگړه دوی نه ده شروع کړې، د دوی پرځای باید له اشغالگرو د اشغال د پای غوښتنه وکړي.

حکومت غوښتل له دې لارې ځان د سولې په هکله مخلص او ژمن وښیي او له دې لارې په طالبانو فشار راولي چې باید د ولس غوښتنې ته مثبت ځواب ووایي، دا هر څه له وړاندې پلان شوي وو، اصلا دا هڅې د سولې د راتگ لپاره نه دي پیل شوې، بلکې د اشغال د دوام او په وړاندې یې د مقاومت د ځپلو په هدف شروع شوی.

د دې خبرې تائید د اجیر حکومت د مشر اشرف غني له وروستیو څرگندونو هم کیږي چې د اوربند د پای ته رسېدو د اعلان پرمهال یې وویل: نور باید ولس په طالبانو د جگړې د پای ته رسېدو لپاره فشار راوړي.

په پای کې باید یادونه وکړو، چې ملت باید د جگړې د اصلي عامل (اشغال) پرخلاف غږ پورته کړي او د ازادۍ او دائمي سولې لپاره مبارزه وکړي.

د ازاد او خپلواک افغانستان په هیله!



# عسکرجانه

## بس کړه نور تسلیم شه (!)

لیکوال: نسیم وردګ

وطن مو د ډېر پخوا راهيسې اشغال شوی ناموس، عزت بلکې هر څه مو چې دي د بل په لاس کې دي، په هر شي باندې مو تجاوز کېږي، د ژوندانه واګې مو د پردو په لاس کې دي، د اشغالګرو چې څه په زړه کې تېريږي نو په مونږ يې عملي کوي، څومره ظلم، وحشت او بربريت يې چې د لاسه کېږي نو را باندې کوي يې، سر، مال، ناموس او عزت په هېڅ مو هم صرفه نه کوي، عسکره ددې هر څه کتو باوجود هم ته د چا سره په صف کې ولاړ يې!؟

**عسکره وروره!**

تاته د لمر غونډې ښکاره شوه چې طالبان څوک دي؟ د کوم ځای څخه راغلي دي؟ څه غواړي؟ او دا هم درته په ښه شان معلومه شوه چې طالبان څومره د ورورولۍ او د اخلاصه ډک خلک دي، له ما څخه تاته ښه څرګنده ده چې طالبان له تا سره پدې خبره دوښمني لري، چې ته د کفارو سره په ليکو کې ولاړ يې او ته د کفارو حمايت کوې، ته ورته ډال جوړ شوی يې، که همدا نن ورځ خپله دغه دنده پرېږدې نو طالبان به تا دومره ونازوي چې ته به پخپل زړهٔ کې ووايې له موره چې پيدا شوی يم ما دومره خوشحالي نه وه لېدلي لکه نن ورځ چې خوشحاله يم، که مشر يې نو طالبان به دې احترام کوي او که کشر يې نو شفقت به درباندې کوي.

**عسکر جانه!**

که چېرې پخوا ته د خلکو يا د پردو په خوله غولېدلی وې او ستا په ذهن کې يې هر رنګه سوالونه پيدا کړي وو لکه د بېلګې په توګه: طالبان څوک دي!؟ چا را پاڅولي دي!؟ مقصد يې څه شی دی!؟ او حمايه يې څوک کوي!؟ دا خو تاته په واضحه توګه څرګنده شوه چې طالبان د همدې سيمې خلک دي، د ظلم په مقابل کې را پاځېدلي دي، مقصد يې اعلاء کلمة الله دی، د الله په ځمکه باندې، هېڅ کوم هېواد يا ډله يې حمايه نه کوي. چې طالبان شل ډلې دي، او سرپرستي يې پاکستان، روس، او ايران کوي.

د طالبانو په ليدو، کتو خو دې يقين پوخ شو چې په دوی کې هېڅ کوم بهرنی کس نه وه، او دا شک دې هم ختم شو چې طالبان شل ډلې دي، بلکې تاته په خپله معلومه شوه چې طالبان يوه واحده ډله ده، سرپرستي يې نه پاکستان کوي، او نه هم روس، ايران او يا کوم بل هېواد، کوم فرمان چې د امير لخوا صادرېږي مشران او کشران يې ورته په ډېره درنه سترګه ګوري، او د خپل سر په بيعه يې د عملي کولو کوښښ کوي.

**عسکره وروره چې اوس هم نه تسليمېږې نو بيا کله!؟**

ته هره ورځ پخپلو سترګو وينې چې ستا د ورور کور بمبارېږي ستا په ورور چاپې وهل کېږي، د



مسلمانانو د یوې کلمې هغه خویندې چې وار په وار یې له بېلا بېلو زندانونو لیکونه راځي، د لیک موضوع یې دا وي چې اې مسلمانه راویښ شه! نور ما وژغوره ما باندې تېرې کېږي، په ما وحشت ترسره کېږي، له الله (جل جلاله) پرته مې تا مسلمان ورور ته سترګې دي،

عسکره ورور! هېڅ ته اوس هم د همغو خلکو سره په صف کې ولاړ یې چې هغه هره شېبه ستا د قتل پلانونه جوړوي، عسکره وروره ته د همغو حمایه کوې چې تا سره یې دښمني اعلان کړې ده، ته اوس هم د هغه خلکو له لیکو نه راجلا کېږې چې ستا په خلاف ستا مخکې دسیسې جوړوي، او ته ورته ګورې، ضمیر دې لږ هم نه ملامته کوي، چې ستا په لاس ستا مسلمان ورور وژني، د طالبانو دومره ښېګڼو سربېره تاته د ډاډ درکولو وروسته هم چې اوس نه تسلیمېږې نو عسکره وروره بیا کله !؟

## عسکر جانه بس کړه نور تسلیم شه!

څومره سوالونه چې ستا په ذهن کې وه نو په دې څو ورځو کې یې تاته په خپله د هغې ځوابونه ذهن ته درغلل، ته په دې پوه شوې چې امارت سپېڅلی ده، صف یې سپېڅلی ده، مقصد یې سپېڅلی دی، اوس خو نو تا طالبان ولیدل چې څنګه خلک وو، څومره مینه یې وکړه درسره، څومره له اخلاصه ډک وو، او د خپلو مشرانو څومره تابعداري یې کوله، آیا دا هر څه ستا په صف کې شته!؟ که نه وي نو بیا ولې ته د پردو غلامي کوې!؟ پاکو خلکو ته ولې نه ورځې!؟ باوجود ددې چې هره ورځ تاته اعلانونه کوي چې اې عسکره راشه! نور تسلیم شه مونږ هېڅ هم نه درته وایوو، ته زمونږ ورور یې مونږ به دې تود هر کلی وکړو زمونږ ته پکار یې، نور مو هېڅ ندي پکار، اې عسکره! ته که اوس هم د طالبانو دغو آوازونو ته لبیک نه وایې نو بیا یې کله وایې!؟

آیا تاته به بیا داسې موقع په لاس درشي!؟ عسکره وروره اوس هم چې نه تسلیمېږې نو بیا کله!؟

* * *



# حقیقت څه دی؟

لیکنه: جاوید "احساس"

زه طالب نه یم، کوم دولتي عسکر هم نه یم، بلکې یو عام ولسي وګړی یم، او پخوا یو څه د طالب خلاف او دولت پلوی وم؛ خو چې کله طالبانو د اختر لپاره د دولت سره درې ورځنی اوربند اعلان کړ،

عسکر هغه سیمو ته لاړل کومې سیمې چې د طالبانو ترولکې لاندې وې؛ او هلته د عسکرو کورونه وو، چې نېږدې شاوْ خوا دوه یا یو کال عسکر هغو سیمو کې خپلو کورونو ته نه و لاړ، او د طالب له ویرې یې نه شول کولی چې خپلو کورونو ته لاړ وی. او طالبان هم ډېری هغو ولایتونو ته لاړل چې د دولت تر ولکې لاندې وو، آن تردې چې ترکابله پورې ورسېدل.

ما به ویل، دولت به ویل، د دولت پلویانو به ویل او ځینو عامو وکړو به ویل چې طالب پنجابی دی، طالب غلام دی، طالب پاکستان د خپلو شخصي- ګټو، موخو او اهدافو لپاره استعمالوي، او طالب د هېرامنډې بچی دی، حال دا چې طالب بېچاره هېرامنډې ببخي پېژني هم نه؛ او طالب بېچاره یې داسې نور په ډَول ـ ډوَل غلطو نومونو او القابو یادولو.

خو طالب بېچاره مې پخپلو سترګو د اوربند په مهال ولیدو چې طالب د چا لپاره جنګېږي موخې او اهداف یې څه دي، طالب پنجابی او که ددې خاورې اصلي بچی افغانی دی، او څومره له حیاء، حسن او ښګلاګانو ډک دی، دومره یې له حسن متأثر شوم، چې هېڅ حد او اندازه نلري.

او طالب خاص د الله ﷻ د رضا لپاره جنګېږي، او په ګران هېواد کې د یو سوچه اسلامي او شرعي نظام د رامنځته کولو پخاطر، د آزادۍ او خپلواکۍ د ترلاسه کولو لپاره جنګېږي، او د طالب اصلاً او اساسي دښمني له چا سره ده، او لندا دا چې دا ټول حقائق راته د لمر پڅېر روښانه او څرګند شول، چې د طالب دښمني له مونږ، دولت، د دولت پلویانو او عام ولس سره نه بلکې په ګران هېواد کې د موجوده کفري اشغال او اشغالګرو ځواکونه سره ده...

اوس نو طالب شوم، سوچ او فکر مې د طالب شو، طالب شوم، طالب به یم او طالب به اوسم.

ویاړم چې (طالب) شوم!



# امریکا: «ناکجاآباد» یکی هم افغانستان!

م سیف الله

هرچند تعدادی از نهادها و نویسنده‌های غربی از جمله بعضی از نظامیان امریکا در مورد جنگ امریکا و ناتو در افغانستان منتقدانه می‌نویسند و راه حل‌های گوناگون را ارایه می‌دارند، اما در حقیقت این خود امریکا و استراتیژی‌های این کشور است که افغانستان را با چنین وضعیت نامطلوب روبرو ساخته است. زیرا این از خباثت‌های ذاتی دموکراسی‌ست که به هر کس و هر نهاد اجازه می‌دهد تا کُفت دل خود را کشیده و منتقدانه بنویسد و راه حل ارایه کند. درحالیکه حکام و دولت امریکا بدون در نظرداشت بسیاری از تناقضات در جزئیات بر اساس استراتیژی‌های بلند مدت نهادهای مختلف امریکایی وضعیت را در مناطق مختلف جهان رهبری می‌کنند.

این تنها عرصهٔ تعلیم و تربیه نیست که مردم افغانستان در آن با مشکلات دست و پنجه نرم می‌کنند، بلکه افغان‌ها بعد از اشغال امریکا و ناتو اکنون بحران‌های را تجربه می‌کنند که در تاریخ خود حتی آن را در خواب هم ندیده بودند. اخیراً هیومن رایتس واچ یا دیده‌بان حقوق بشر، گزارش ۴۹ صفحه‌یی خود را تحت عنوان "جای مصون وجود ندارد" منتشر ساخت. به راستی هم اکنون در سرتاسر افغانستان، بدون پایگاه‌هایی نیروهای امریکا و ناتو اصلاً جای مصون وجود ندارد .

وقتی اساسی‌ترین نیاز مردم "امنیت" تأمین نباشد، بدون شک که تمام عرصه‌های زندگی با بحران‌های عدیده‌یی روبرو می‌گردد. از همین رو یافته‌های تازهٔ وزارت مبارزه علیه مواد مخدر افغانستان نشان می‌دهد که در این کشور ۹۰۰۰ تن مواد مخدر تولید شده‌است. درحالیکه در سال ۲۰۰۱م تولید سالانهٔ آن از ۱۸۰ تن تجاوز نمی‌کرد.

فراتر ازین، وقتی به این پیمانه تولید مواد مخدر صورت گیرد؛ کشت، پروسس تولید و قاچاق آن سبب شکل دادن یک اقتصاد جرمی در کشور می‌شود و در نتیجه سفیر امریکا در افغانستان بی مهابا لب به سخن گشوده و به زبان و دندانی که به خون مردم این سرزمین آغشته شده است؛ افغانستان را مبدأ و راه ترانزیت قاچاق انسان می‌خواند و این پدیده را چالش بزرگ برای این کشور می‌داند. جان بس که

به مغز متفکر داعش شهرت یافته است، اخیرا در گردهمایی که از بهر معرفی "شبکه مبارزه با قاچاق انسان در افغانستان" برگزار شده بود این مطلب اسفبار را ابراز داشت. وی با بسیار بی شرمی اضافه نمود: در کشوری که قانون تطبیق نمی‌گردد، مردمانش قربانی این پدیده هستند و تاکید ورزید که پناهجویان افغان و بی‌جا شده‌گان داخلی در این کشور، بیشتر از این رهگذر متضرر اند و باید برای محافظت جان آنان دست به کار شد. درحالیکه افغانستان در سال هژدهم تلاش‌های این خبیث‌های استعمارگر قرار دارد تا قانون بشری- وضعی که برخلاف عقیده و خواست مردم این سرزمین است، بر آنان تحمیل گردد.

اشغال‌گران استعمارگر برین هم بسنده نکرده، بلکه برای اغوای افکار عامه مردم و جهانیان، گزارش‌های عجیب و غریبی را به نشر می‌رسانند که از شیطنت شان شیاطین جنی در حیرت قرار می‌گیرند. از آن جمله اداره‌های مفتشین عمومی وزارت‌های دفاع و خارجه امریکا و مؤسسه انکشاف بین‌المللی امریکا، راپوری را به کانگرس این‌کشور پیشنهاد کرده‌اند که در آن گفته می‌شود، علایم پیشرفت در افغانستان محدود است. تا مالیه دهندگان غربی را برای تمویل برنامه‌های امریکایی برای سال‌های متمادی آماده سازند.

آنان برای پیشبرد پروژهٔ جنگی خود در منطقه، مردم افغانستان را با فقر بی سابقه‌یی روبرو ساخته‌اند. تا برای تمام جهت‌های جنگی زمینه سربازگیری فراهم باشد. بر اساس آماری که اخیراً توسط ادارهٔ مرکزی احصائیهٔ افغانستان منتشر شد؛ بیش از ۵۴ درصد مردم افغانستان در سال ۱۳۹۵ زیر خط فقر قرار داشتند که در مقایسه با سال قبلی آن، ۱۶ درصد افزایش را نشان می‌دهد. درحالیکه این آمار حاکی از واقعیت دو سال قبل افغانستان است. اما بدون شک که واقعیت امروزی به مراتب از ارقام ارایه شده بدتر شده است.

امریکا و ناتو همزمان با اشغال با پمپ کردن پول هنگفت به بازارهای افغانستان، افغان‌ها را دچار فساد گسترده نمودند و یک قشر سرمایه‌دار فاسد و غلام حلقه بگوش خود را در افغانستان به میان آوردند تا تمام برنامه‌های استعماری شان را توسط آنان تطبیق نمایند. درحالیکه وضعیت اقتصادی مردم عام، از بد، بدتر شده است.

اداره بازرس ویژه ایالات متحده امریکا برای بازسازی افغانستان موسوم به (SIGAR) در تازه‌ترین گزارش خود در مورد افغانستان گفته: شمار نیروهای امنیتی افغانستان به شمول پولیس ملی و اردوی ملی طی یک سال گذشته، در حدود ۱۰ درصد کاهش یافته و هم اکنون این رقم به ۲۹۶ هزار و ۴۰۹ تن تا تاریخ ۳۱ جنوری ۲۰۱۸ رسیده است. دولت افغانستان تنها کنترول بر ۵۶،۳ درصد از ولسوالی‌ها را دارد و متباقی اراضی در دسته «در حال نزاع» قرار می‌گیرد.

با در نظرداشت موارد فوق، وضعیت واقعی به مراتب وخیم‌تر است. مردم بعد از فقر، دچار فحشا، فساد، اختطاف، قاچاق مواد مخدر، تبعیض، تفرقه و منازعهٔ داخلی شده‌اند. بمباردمان هوایی امریکا بر مراکز مخالفین مسلح به آخرین حد خود رسیده که سبب بیشترین تلفات ملکی گردیده است. ترور، وحشت، انتحار و انفجار در شهرها به اوج خود رسیده است، نهادهای استخباراتی و کمپنی‌های قراردادی کشورهای ذیدخل در قضیهٔ افغانستان، روزانه درین عرصه با هم رقابت می‌کنند. بالاخره هر نوع رشد در هر عرصهٔ زندگی مردم با بن‌بست مطلق روبرو گردیده است و ارگ نشینان به حمایت نیروهای اشغال‌گر از پشت دیوارهای سمنتی به مردم امیدهای کاذب می‌دهند.

فلهذا جای بس تفکر و تأمل عمیق است! یا باید کمر همت ببندیم و علیه تمام مواردی که سبب موجودیت اشغال‌گران و استعمارگران در این سرزمین اسلامی می‌گردد، شب و روز مبارزه نماییم و مردم خود را ازین منجلاب نجات دهیم و یا باید سر به فرمان تسلیم فرونهیم و ممد تغییر نسلیی که در جامعه ما توسط آنان راه اندازی شده قرار گیریم و دیگر اصلاً از ارزش‌های خود سخن نزنیم. سرنوشت و آینده خود را مانند سرنوشت اندلس فراموش شده به دشمن تسلیم کنیم.

وَاعْتَصِمُوا بِحَبْلِ اللَّهِ جَمِيعًا وَلَا تَفَرَّقُوا

# اختریز اوربند څه ثابت کړل؟

■ جاوید علي خېل



طالبان د افغانستان په تاریخ کې هغه جریان دی چې له جګړو د هیواد د ایستلو لپاره د اولس له منځه راپورته شوی دی. زموږ په یاد دي چې په اوپایموکلونو کې هیواد کې هرج او مرج او کورنۍ جګړې وې، کلي په کلي، ښار په ښار او کوڅه په کوڅه جګړه ماران سره نښتي وو. طالبان دهمدې جګړو د پای ته رسولو او سولې لپاره راپورته شول، هغوی د خپل سولییز خاصیت  د اثبات لپاره د امن سپین بیرغ خپل نښان کړ، هغوی په ډېر لنډ وخت کې دتنظیمي جګړو لړۍ پای ته ورسوله او افغانستان ته یې داسې امن ډالۍ کړ چې له اسلام قلعه تر تورخمه خلکو د پیسو له پنډو سره په شپه او ورځ سفرونه کولای شوای. طالبان د سولې پربښتې وبلل شوې او چیرته به چې طالب و هلته د جنګ، غلا، لوټمارۍ او ټوپکمارۍ خونه سپیره وه. طالبانو محدود شمیر شرعي حدود نافذ کړل او په برکت یې د دیرش میلیونه افغانانو ژوند، عزت او مال خوندي شو.

خو د نړیوالو او سیمه ییزو شیطانانو کله پر افغانستان هغه امن او سوله پیرزو وه، له لومړۍ ورځې یې د طالبانو خلاف تبلیغات او دسیسې پیل کړې،طالبان یې په مختلفو تورونو تورن کړل. د هغوی د هویت مسخ کولو لپاره عجیب او غریب القاب رامنځته کړل تر څو یې رنګ وربد کړي. په هر حال

سږکال د کوچني اختر په شپو کې د اسلامي امارت د مشرتابه لخوا درې ورځنۍ اوربند اعلان شو. هغه څه چې د اوربند په شپو کې ثابت شول، د نړۍ او افغانستان په سطحه یې د طالبانو په اړه عام نظر بدل کړل چې دلته د اوربند په شپو کې ښکاره شویو حقائقو ته په لنډو اشاره کوو.

## اسلامي امارت واحد او متحد صف دی

دا ډېر کلونه رسنۍ تبلیغات کوي چې طالبان واحده ډله نه ده، بلکې په دې کې د پلانۍ او پلانۍ شوراګانو په نوم جلا ډلې او ګروپونه دي. یو وخت مې د یوې حکومتي ورځپاڼې مقاله په یاد ده چې لیکلي یې و، یوازې په نورستان کې لس مختلفې ډلې جنګیږي. امریکایانو او ملګرو یې هم د سولې په اړه بهانه کوله چې طالبان متحده ډله نه ده چې دوی ورسره مذاکرات وکړي.

اما دې اوسني اوربند ثابته کړه چې دلته له بدخشان تر نیمروزه او له هرات تر  خوسته د اسلامي امارت په نوم یوازې یوه ډله ده چې د امریکایي اشغال په مقابل کې جهاد کوي. په دې صف کې نه خو متعدد قیادتونه شته او نه هم د فرمان او قومندې بیلابیل مراجع . همدا یو اسلامي امارت دی، یو یې امیر دی، یو یې قیادت دی، یو یې حکم او فرمان دی او چې کله یې د اوربند په اړه فرمان صادر کړ، نو موږ ولیدل چې د هیواد په ۳۴ ولایاتو کې په متحد ډول سنګرونه خاموش او د ټوپکو خولې بندې شوې، نه خو چا سرغړونه وکړه او نه هم د کوم شخص، ډلې یا ګروپ په عنوان دا خبره وشوه چې موږ جلا ډله یو او دغه د اوربند فرمان نه منو. مطلب دا چې له دې وروسته هیڅوک حق نلري چې ووایي طالبان بیلابیل ډلې دي، یا دلته د طالب تر عنوان لاندې بهرنۍ او د مختلفو هیوادونو ګروپونه جګړه کوي. طالبان متحد صف دی چې یوه

يې تکلاره او يو يې قيادت دی او دا خبره اوسني اوربند په ښه ډول ثابته کړه.

## اوربند او د عامو طالبانو بې ساری اطاعت

د افغانستان په سياسي تاريخ کې داسې ډلې خورا کمې پيدا شوې چې قيادت دې په پيروانو بشپړ تسلط او واکمني ولري. همدا اوس موږ وينو چې د ولسمشرۍ له عنوان سره سره د اشرف غني فرمان په څو سوه متره آخوا سپيدار ماڼۍ کې نه چليږي. مګر د طالبانو مشر شيخ هيبت الله صاحب چې يوازې د کاغذ پر مخ د اوربند امر صادر کړ نو د هيواد په لر اوبر کې له کشره تر مشره، له نظامي تر ملکي، له قومندان تر عامو افرادو ټولو ورته لبيک ووايه او په سر سترګو يې قبول کړ.



داسې يوه ډله چې د خپل دوه نيمي لسيزې عمر ډيره برخه يې په جنګونو کې تېره شوې، د اوربند هيڅ سابقه او تجربه نلري. اومجاهدين يې همدا اوس له مخالف اړخ سره د جګړې په سنګر کې واقع دي. خو کله چې د خپل مشر ليکلی فرمان ورته رسيږي نو د سنګر مجاهدين يې خپل جنګي مزاج يوې خوا ته ږدي او په ټول اخلاص سره د خپل امير د اوربند امر پر ځای کوي.

دا کومه وړه خبره نه ده، دا وړ نظم نه خو د دنيا د معاصرو پوځي ستراتيژيو په وس پوره دی او نه هم د مخالف اړخ له ادعاء سره سم کوم استخباراتي لاس داسې نظم را پنځولی شي. دا نظم يوازې په روحي او معنوي تړاو، اخلاص، للهيت او د قرآن کريم د دې آيت په مفهوم باندې بنا دی چې مسلمانانو ته وايي( و اطيعوا الله و اطيعوا الرسول و اولی الامر منکم....) دې بې ساري اطاعت د طالبانو ديني او معنوي حقانيت نور هم ثابت کړ.په دې سره وليدل شول چې د اسلامي امارت مجاهدين د ماديانو، اشخاصو، شخصي انګيزو او نورو دنيوي تړاوونو لپاره نه جنګيږي. بلکې يوازې د الله تعالی د دين لپاره جنګيږي، يوازې د دين په هداياتو عمل کوي، د دين له لارښوونو سره سم د خپل قيادت امر منل پر ځان واجب بولي او پرته له ځنډه يې په ټول اخلاص مني.

## طالبان سپين سپيڅلي متدين خلک دي

دا شل کاله د غرب رسنۍ د خپلو راډيويي تبليغاتو، فلمي اصداراتو، کتابونو، ټيليويزوني راپورونو او حتی ناولونو او د ادب او ژورناليزم د بيلابيلو ژانرونو په توسط همدا تبليغات کوي چې طالبان د افغانستان او نړۍ خلکو ته له انسانيت ماوراء د بل وړ موجوداتو په حيث وروپيژني.

دا شل کاله رسنيو همدا ويل چې طالبان سړي خواره دي. له ځان پرته بل چا ته د ژوند حق نه ورکوي. په مينه، محبت، انساني تعامل او خبرو نه پوهيږي. له ښاري انسانانو يې کرکه کيږي. که د ښار شيک پوشه ځوانان د طالبانو سيمو ته لاړ شي نو سمدستي وژل کيږي حتی ځينو راډيو ګانو خو د طالبانو د شهرت مسخ کولو لپاره داسې القاب هم جوړ کړل چې دغه ډله خلکو ته له عادي انسانانو جلا د يو بل وړ مخلوق په حيث ورمعرفي کړي .

مګر په تيرو ورځو کې چې په افغانستان کې اوربند و په بيلابيلو سيمو کې د ښارونو خلک د طالبانو سيمو ته لاړل، دغه راز ځينې طالبان د ښارونو څنډو ته لاړل او د اختر لمونځونه يې له ښاريانو سره اداء کړل. د ښار خلکو وليدل چې طالبان د دې هيواد تر ټولو سوچه او د اسلام او افغانيت په ترازو تر ټولو پوره ختلي خلک دي.

هغوی د بياباني غاټولو په څير د هيواد په کليوالي طبعي چاپيريال کې د سوچه فرهنګ، سوچه ژبې، سوچه آب و هوا او صفا چاپيريال په غيږ کې پيدا او رالوی شوي دي. هغوی د

نسب او حسب دواړو په لحاظ اصل دي.د هغوی ختې د اسلام او افغانیت له سوچه عاداتو جوړه ده. د هغوی ګلورینې ځوانی په سیمه او نړۍ کې بې سیاله دي.د هغوی اخلاق د اسلام له سپیڅلو هدایاتو سرچینه اخلي. هغوی د مینې، وفا، غیرت، میلمه پالنې او اخلاص سمبولونه دي. د اختر د ورځو اوربند په حقیقت کې د غرب په ټولو تبلیغاتو د بطلان کرښه راتیره کړه. خلکو په خپلو سترګو ولیدل چې طالبان تر کومه حده معیاري انسانان او مخلص مؤمنان دي.له دې وروسته به د هیڅ زړه ته د غربي رسنیو هغه تبلیغات ونه لویږي چې طالبان بې تهذیبه خلک بولي او د اروپا دقرون وسطی له ځنګلي انسانانو سره یې تشبیه کوي.نور باید د ازادۍ راډیو نطاقانو د طالب د بدنامولو لپاره ستوني ونه شلوي ځکه افغانان پوه شول چې طالبان څوک او څنګه خلک دي.

## اسلامي امارت کومه جنګي ډله نه ده

نړیوالو شل کاله تبلیغات کول، چې طالبان یوه جنګي ډله ده. هغوی سوله او اوربند نه پیژني، هغوی د جنګي ماشین په څیر یوازې جګړه کولای شي او بل په هیڅ شي باور نلري. مګر طالبانو د اوربند په اعلان سره د دښمن دغه تبلیغات په اوبو لاهو کړل، طالبانو ثابته کړه چې هغوی لکه څنګه چې د اشغال پر ضد د مقاومت قهرمانان دي، همداسې دخپل اولس لپاره د سولې ارمانجن هم دي. د اولس خوښیو او ارامۍ ته ژمنتیا لري او دا میړانه ورسره شته چې د جګړې په تاوده ډګر کې د سولې او سلم بیرغ پورته او اوربند اعلان کړي. له دې وروسته که څوک طالبان جنګي ډله بولي هغه به یوازې دتعصب او حسد رنځ نیولي وي.

## طالبان د اولس هوساینې ته ژمن دي

د اوربند له پریکړې او تعمیل څخه ثابته شوه چې طالبان د اولس په نبض پوهیږي، هغوی د اولس درد احساسوي، په خپل اولس یې روان جګړه بیز حالت نه دی پیرزو، خو دا چې د اشغال پر ضد جهاد هم دیني فرض دی او هم وجداني غوښتنه نو ځکه په ټول قوت د اشغال خلاف جهاد ته دوام ورکوي. خو داختر په شپو کې په اوربند سره طالبانو یو ځل بیا د اولس په زړه کې خپل مقام تثبیت کړ، طالبانو ثابته کړه چې د جهاد له شرعي فریضې سره سره هغوی د خپل مؤمن اولس غوښتنو ته هم درناوی لري،د طالبانو لخوا د اوربند اعلان ته عام افغان اولس داسې پراخ هرکلی ویلی چې له تصور لوړ دی،د طالبانو له اعلان وروسته په فیسبوک او عامه رسنیو کې حتی د طالبانو مخالفینو ددې اعلان هر کلی کړی.

## د آی ایس آی او پنجابي توب الزام

رښتیا، هغه پنجابیان څه شول چې دا اوولس کاله یې رسنیو او دطالبانو مخالفینو حکایت کاوه؟ هغوی د اختر په ورځو کې په ځمکه ننوتل او که په هوا والوتل؟ ځمکه او فضا خو د امریکایي څارګرو تر پوښښ لاندې ده. د اختر په شپو کې خو د هیواد بیلابیلو سیمو خلک د طالبانو تر واک لاندې ساحو ته لاړل. مګر نه کوم چا چیرته پنجابی ولید او نه یې د آی ایس آی د جنرال یا ډګروال په اړه راپور ورکړ. خلکو ولیدل چې طالبان د همدې وطن خلک دي. د وطن په ژبو خبرې کوي. وطني عادات، رنګ او فرهنګ لري. نه خو په کې چا د پردیتوب یوه علامه کشف کړه او نه یې هم د طالبانو په منځ کې د بهرنیو مشاورینو او جنګیالیو د شتون په اړه خبر ورکړ.

اوس چې دغه خبره هم ثابته شوه چې طالبان پنجابیان نه بلکې سوچه افغانان دي. نه پوهیږو طالب ضد مطبوعات چې یوازې د خپل احمقانه ضد او عقدې په ټټو سپاره دي. د خپلو تیرو شل کلنو تبلیغاتو توجیه او جبیره به څنګه کوي؟ خپلو لیدونکو او اوریدونکو ته به په کوم مخ او پوزه ورمخ کیږي. دا چې اوریدونکې یې پوه شول چې د طالبانو په اړه شل کاله ورته دروغ ویل شوي، آیا دغه رسنۍ به په راتلونکې کې هم ددغسې دروغو جرئت وکړي؟

دغو مطبوعاتو ته مشوره دا ده چې نور له دغسې بې بنیاده او خندوونکو تبلیغاتو لاس واخلي. طالبان چې په نن عصر کې د استقلال او خپلواکۍ امامان بلل کیږي، عقل یې نه مني چې د کوم بل چا د غلامۍ کړۍ دې په غاړه قبوله کړي. طالبان چې د حریت او خپلواکۍ مینې ته یې دنړۍ جنرالان تسلیم شوي په دغسې پوچو تبلیغاتو یې هیڅوک نه شي بدنامولای، نوځکه باید له دغسې بې اساسه تبلیغاتو اجتناب وشي.



# دشعار تر کچې سوله غواړي؟

**خلیل عزیز**



تاسې ولې دومره کانه، ړانده او بې قضاوته یې چې د شخړې او ستونزې په اصلي ځای او جرړې تبصره قدری هم نشی کولای ایا تاسې نه پوهیږي که امریکایی حضور او اشغال په افغانستان کې نه وي او دلته یو سوچه اسلامي نظام قائیم او مسلط وي طالبان او مجاهدین کوم مجبوریت او اړتیا لري چې جنګ ته دوام ورکړي او هره ورځ خپلې قیمتي ککري قربان او خاوري کړي؟

د حیرانتیا وړ ټکی دا دی چې د کابل رژیم دولتي مامورین، خطبیان، ملایان، مدنی فعالان، پرلتیان او په نورو نومونو جوړ ټولګي له یوې مخې شعارونه ورکوي چې مونږ سوله، جوړه او ارامي غواړو؛ د دوئ په اصطلاح روان جنګ خپل منځي بولي او ژر تر ژره یې د پای ته رسید وغوښتنونه کوي

خو د سولي د د غو مدعیانو له حنجرو څخه یوه ورځ هم دا خبره راونه وتله چې دوئ په افغانستان کې د خارجي قواوو په شتون اعتراض او نیوکه لري، د امریکایي عسکرود وحشتونو، چاپو، بمباریو او ړرون بریدونو غندنه کوي ژر تر ژره یې د رول غواړي، له امریکایانو او نورو اشغالګرو هیوادونو څخه غواړي چې خپل عسکر ژر تر ژره له افغانستان څخه وباسي او افغانان پریږدی چې دیو باثباته اسلامي نظام تر سیوري لاندي ارام ژوند او ساه اخیستو ته دوام ورکړي.

مونږ د سولي په نامه تیرو تلو اویا مجبور شوو ملایانو، مدني فعالانو، پرلتیانو اویا پیاده روانو ته وایو چې دا خو امریکایان وو چې ۱۷ کاله وړاندي یې له صلیبي دعوي او انتقام جویانه ستراتیژۍ سره په افغانستان یرغل راوړ، بې رحمه جګړه یې پیل کړه، دری لکه مظلوم افغانان یې شهیدان کړل، دوه میلونه یې شکنجه او په لکونو یې له خپلو کورونو او جونګړو دربدره کړه؛ او س چې امریکایان له خپلې ټولي زورازمویي سره الله پاک رسوا، شرمنده او په هر میدان کې له شکست سره مخ کړل نو په دې وخت کې یې دیوه نیرنګ او شعار په ډول د جعلي سولي شعارونه، غونډې، فتواوي او نور تحرکات په کار اچول، تر څو عامه ذهنیت له امریکایی شتون او یرغل څخه بل لور ته واړوي چې ګواکي روان جنګ د افغانانو خپل منځي دی.

مونږ کلک باور لرو چې د سولي شعارونو ته استخدام شوو څیرو به هم همدغه ځای درک کړی وي چې که نن امریکایان پریکړه وکړي چې هغوئ له افغانستان څخه خپلې لښکري باسي او نور خپل وحشت او بربریت ته د پای ټکی ږدي نو له شک پرته به دلته ارامي رازي او د سولي او تفاهم لپاره به عملي لاري چاري برابریږي

دا چې امریکایان د جګړې په میدان کې کلک ولاړ دي او د افغانستان فضا او ځمکه یې تر کلک تسلط او اشغال لاندي نیولي او عملا د افغانانو قتل عام ته دوام ورکوي او د کابل دست نشانده رژیم د امریکایانو له خوښې او اشاري پرته د یوه والي او امنیه قومندان د تغیر او تبدیل صلاحیت هم نلري او بیا په عین حال کې د جعلي او نمایشي سولي ناري هم بدرګه کوي او خپلو مامورینو او افرادو ته یې هم همدغه شکلي مواد او شعارونه په لاس ورکړي چې ګواکي دوئ سوله او امن غواړي او له امریکایانو څخه هیڅ غوښتنه او پوښتنه نلري؛ نو بیا خو دا له لکه لمر ښکاره خبره ده چې د د غو حرکاتو او هڅو شاته امریکایی دسیسي او شرارتونه ځای لري؛ نو که څوک فکر کوي چې دغه نامراده شعارونه به کوم انجام ته ورسوي دا به د دوئ لویه اشتباه او صریح جهل وي!!!

افغان مجاهد ولس به هلته د سولي دا ډول شعارونه رښتیاني او په افغاني درد او غم مبني وبولي چې د سولي د مدعیانو په وینا او، پوست کارټونو او بیرغونو کې په واضح ډول دا توري درج او لیکل شوي وي چې (امریکایان دې نوز مونږ خاوره او هیواد پریږدي او د افغانانو دیني او ملي استقلال درناوی دې وکړي)

# عزیز الله کاروان

## څوک و او ولې ووژل شـــو؟؟



حبیب مجاهد

د روان کال د جون میاشـتې پـه ۲۷ مه ماښـام ناوختـه رسـنیو راپـور ورکړ چـې پـه پکتیکـا ولایـت کـې د امریکایانو تر ټولو سـتر جاسـوس او اجیر جګړه مار عزیـز اللـه کـاروان د کابل ښار د مکروریانو ساحې ته نږدې وژل شوی دی. دغه خبر کـه څـه هـم رسنیو ډیـر انعکـاس ورنکـړ خـو پـه واقعیت کې د مجاهـدینو لخـوا د پیـل شویو الخندق عملیاتو له مهمـو لاسـته راوړنو څخه شمیرل کیږي.

قوماندان عزیز الله چې په عزیـز الله کاروان یي هـم شـهرت درلـود، د پکتیکا ولایـت د اورګـون ولسـوالۍ د کلاخیلو د سیمو اوسیدونکی و. اوولس کالـه وړانـدې چـې امریکایـانو پـه افغانستان یرغل کاوه، عزیز اللـه شـل کلن ځوان و او له پکتیکا تر کابلـه یـي ټکسي چلوله. د امریکایـانو لـه راتـګ وروسته چې په ټولو سیمو کې یو ځـل بیا پخوانیو ټوپکیانو سرونـه راپورتـه کړل او له امریکایانو سره یې د ډالـري معاشونو په مقابل کې کرایي عسکري خدمت پیل کړ. له دې جملـې یـو هـم پـه پکتیکـا کـې قوماندان زکیم خان و چې په اورګون،برمل او شاوخوا سیمو کې یې د امریکایانو پـه مرسـتیو یوه محلي ملیشه جوړه کړه.

عزیز الله کاروان چې دغه وخت شل کلن و لومړی یي له قوماندان زکیم خـان سره ځـان ملګری کړی او د شکین په امریکایي کمپاین کې یې د امریکایانوتر مستقیمي قومندې لاندې د مجاهدینو، طالبانو او متدینو افغانانو په خلاف عملیاتو کې برخه اخیسته. په دې مهال چې په پکتیکا کې لومړني جهادي عملیات پیلیدونکي وو، زکیم خان او عزیز الله د امریکایانو تر ټولو وفادار ګوډاګیان یادیدل چې د عام اولس د کورونو په تلاشیو، د بې ګناه خلکو نیولو، شکنجه کولو او وژلو کې یې برخه اخیسته. دوی ډیـر عـام افغانـان د طالـب او القاعـده پـه نـوم امریکایانو ته په لاس ورکړل چې له جملې یې یو شمیر د ګوانتانامو زندان ته هم ولیږل شول.

عزیز الله چې په بې رحمۍ، قساوت او امریکایانو ته په تابعدارۍ کې یې نوم درلـود، د امریکایي مشرانو توجه یي جلب کړه نو ځکه یي نوموړی د ځـانګړو جنګـي تعلیماتـو لپـاره انتخاب کړ او وروسته یې د قطعه خاص په نوم د یوې داسې جنګي قطعې مشري وروسپارله چې اکمال او هوایي ملاتړ یي امریکایانو کاوه خو په جګړه کې مستقیمه ونډه د عزیز الله تـر مشرۍ لاندې ځایي ټوپکیانو اخیسته.

له هماغه وخت نه د امریکایانو په مخامخ ملاتړ پـه پکتیکـا کـې د عزیـز اللـه د نفـوذ پراخولو او شهرت لړۍ پیل شوه. د برمل، اورګون، خیرکوټ، زیړوک، شکین او شاوخوا نـورو سیمو کې د نوموړي تر مشرۍ لاندې سلګونه ټوپکیان ځای په ځای شول. دوی ته بې شـمیره واکونه او د هر ور اعمالو د ترسره کولو اجازه ورکړل شوه چې په دې ډول عزیـز اللـه د یـوه خونخوار او بې رحمه جګړه مار په حیث د پکتیکا په څو ولسوالیو مسلط شو.

په تیره یوه نیمه لسیزه کې عزیز الله کاروان او ملیشې یې په پکتیکا ولایت کې اصلي حکومتي ځواک بلل کیده. دوی مستقیما له سي آی اې سره تړاو درلود. په ۲۰۱۱ میلادي کال کې عزیز الله د محلي پولیسو یا اربکیانو د مشر په حیث وټاکل شو. د نوموړي لخوا د پکتیکا په اکثرو ولسوالیو کې اربکیان رامنځته شول چې په ځینو سیمو کې تراوسه هم فعالیت لري. په دې وروستیو کې چې د کورنیو چارو وزارت په چوکاټ کې د صفر یک په نوم د پولیسو ځانګړي کوماندویي قطعه جوړه شوې په پکتیکا کې یې مشري عزیز الله کاروان ته سپارل شوې وه. نوموړي نه یوازې په پکتیکا بلکې د ځنګلورو پکتیا او غزني ولایاتو کې هم په یو شمیر عملیاتو کې برخه درلوده او لاهم په جنوب ختیځ افغانستان کې د دښمن د تر ټولو مطرح او ظالم قوماندان په حیث یې خپلې وظیفې ته دوام ورکاوه.

عزیز الله د جنګي مجرم په حیث

عزیز الله کاروان د جنرال عبدالرازق، حکیم شجاعي او نورو بې رحمه قاتلانو په شان یو له هغو کسانو څخه و چې د امریکایانو د دفاع لپاره یې له خپلو هیوادوالو سره له هیڅ راز ظلم او قساوت څخه انکار نه کاوه. نوموړي عادت درلود چې په کومه جګړه کې به یې مجاهدین شهیدان کړل، نو یا به یې تر خپل مرکز پورې په ټانګونو پورې تړلي کشول او یا به یې د موټرو په بانټ باندې اچولي وو تر څو یې خلک ننداره وکړي.

په دې سربیره نوموړی د تلاشی په مهال د خلکو د پیسو او قیمتي توکو په غلاکولو هم مشهور و، د نوموړي جنګیالي اکثره په نشه یي توکو روږدي، بدکاره او بد اخلاقه ټوپکیان وو چې د سړیتوب او مسلمانۍ هیڅ معیار او حد ته یې التزام نه درلود.

د عزیز الله د ظلم او جنګي جنایاتو خبره دومره مشوره شوه چې د بشري حقوقو د څار اداري هیومن رائټس واچ په ۲۰۱۵ م کال د مارچ میاشت کې د افغانستان په اړه په خپل راپور کې نوموړی یو له سترو جنګي مجرمینو څخه وباله چې په ډیره بې رحمۍ بې ګناه خلک وژني.

د بشري حقونو د څار اداري دغه راپور د ۱۲۵ مرکو پر اساس لیکل شوی چې په ۲۰۱۲ز کال کې د قربانیانو له کورنیو، عیني شاهدانو، دولتي چارواکو، قومي مشرانو، ژورنالیستانو، مدني فعالانو، ملګرو ملتونو چارواکو او له افغان او نړیوالو ځواکونو سره شوې.

په دې راپور کې د عطاء محمد نور، قوماندان رازق، اسدالله خالد، حکیم شجاعي او قوماندان میر عالم تر څنګ عزیز الله هم د بشري حقونو په نقض پر بلل شوی دی. بشري حقونو د څار اداره وایي چې عزیز الله په عملیاتو کې غلاوې کولې، ماشومان یې نیول او شکنجه کول او په عملیاتو کې یې قصدا د ماشومانو په شمول ملکي وګړي وژل.

د عزیز الله جنایتونو له منځه بشري حقوقو د څار اداري لیکلي چې په ۲۰۰۹ز کال کې د پکتیکا ولایت د برمل ولسوالۍ په نظام خیل سیمه کې ۹ بې ګنا خلک ونیول چې ۳ یې ماشومان و او عمرونه یې له ٦ تر ۱۰ کلونو پورې وو. عزیز الله دغه ټول بې ګناه کسان ووژل.

همدا راز یې د برمل ولسوالۍ په جنوب کې ۳ ملکي وګړي د طالبانو په تور ونیول او د نومبر په ۳۰مه (۲۰۰۹ز) کال یې ووژل.راپور زیاتوي چې د قوماندان عزیر الله ملګرو په ۲۰۰۹ سپتمبر/اکتوبر کې په برمل ولسوالۍ ۳ کسان احمد ګل، ورور یې عمر خان او یو بل تن چې په پټیو کې یې دهقاني کوله، ووژل.

عزیز الله نه یواځې د دغو کسانو په وژنه اکتفا ونه کړه بلکې مړي یې په موټر پسې وتړل او د یادې ولسوالۍ مارګ منډیي بازار پورې کش کړل. همدا راز یې اته ورځې کورنیو ته ورنه ورکړل تر هغې چې د مړو جسدونه نور خرابېدل پیل کړل نو دوی بیا جسدونه کورنیو ته وسپارل.

ملګرو ملتونو داسې راپورونه هم ترلاسه کړي چې عزیز الله خپلسري نیول، پر هغوی ظلم کول، خپلسري وژنې او محاکمې او ماشومان یې په زور د عسکرو په لیکو کې اچول. راپور زیاتوي عزیز الله په ۲۰۱۲ جون کې یوازې له یوې کورنۍ څخه په عملیاتو کې نیږدې ۲ میلیونه افغانیو په اندازه پیسې او سره زر غلا کړي وو. وروسته یې د دغې کورنۍ غړي بندیان کړي وو او له ۳۳ ورځو وروسته یې د ۲۵زره کلدارو په بدل کې خوشې کړل.

بشري حقونو د څار ادارې نور هم دې ته ورته د خلکو مرکې په خپل راپور کې یادې کړي چې عزیز الله بې ګناه ملکي وګړي نیول، زندان ته یې اچول او وروسته یې د پیسو بدل کې خوشې کول.

عزیز الله کاروان د دغو جنایاتو په مقابل کې له خپلو بادارانو (امریکایانو) څخه ډیرې پیسې هم ترلاسه کولې، نوموړي په اورګون کې په پراخه سیمه ځانګړی دربار جوړ کړی و چې یو مجلل قصر، باغ، جیم او د هوسرانۍ ځایونه یې په کې ودان کړي وو. نوموړي په کابل کې هم کور او ملکیتونه درلودل او ډیر ځله به د استراحت لپاره کابل ته تلو.

عزیز الله چې د اسلامي امارت د مجاهدینو له سترو اهدافو څخه و، تر دې وړاندې ۷ ځله په بیلابیلو چاودنو او بریدونو کې ټپي شوی و. خو د جون میاشتې په ۲۷ نیټه کله چې د کابل ښار د دریم مکروریان په سیمه کې د فردوسي پارک دننه له خپلو ملګرو سره په تفریح بوخت و، د اسلامي امارت چریکي مجاهدینو په مخامخ ډزو په نښه کړ او ځای په ځای یې د خپلو اعمالو په سزا ورساوه.

د کابل په زړه کې دغه چریکي برید دومره دقیق پلان شوی و. چې تر ډیرو پورې حکومتي چارواکي ترې خبر هم نه شول او ځینو رسنیو د دولتي چارواکو له خولې خبر ورکړ چې په پارک کې دننه د دوو کورنیو تر منځې جنجال شوی دی. تر دې چې تر ټولو لومړی د اسلامي امارت ویاند ذبیح الله مجاهد صاحب رسنیو ته په استولې خبرپاڼه کې ومنله چې برید مجاهدینو کړی او د صفر یک قطعې قومندان عزیز الله یې وژلی دی.

د قومندان عزیز الله له منځه تګ که له یوې خوا د امریکا غلامانو ته واضح د خطر زنګ دی او هغوی په دې پوهوي چې د مظلوم ملت له محاکمې او حسابه ځان نه شي ژغورلی، له بلې خوا یوه ستره جهادي بریا هم ده ځکه په جنوب ختیځ افغانستان او لویه پکتیا کې نوموړی د اشغالګرو تر ټولو اساسي مهره وه چې له منځه لاړه او په دې سره به جهادي وضعیت نور هم ښه شي.

## هند کې د غواګانو وزارت پر جوړولو غور کېږي

د هند لکهنو ښار کې د وینا پر مهال د دغه هېواد واکمن بي جي پي ګوند یوه مشر امیت شاه ویلي د غواکانو وزارت پر جوړولو غور کېږي.

نوموړي ویلي: په دې اړه ډېر وړاندیزونه شوي دي او په باب یې غور او فکر کېږي.

د ښاغلي امیت د دغو څرګندونو پر مهال د اترپردېش ایالت اعلی وزیر جوګي ادیتیا ناته هم و. تر اوسه معلومه نه ده، چې دغه وزارت به کوم کارونه کوي.

هند کې دا وروستیو کې د غواګانو خوندیتوب او ساتنې په تړاو خونړۍ پېښې شوې دي.

په ځینو ایالتونو کې، چې په کې بي جي پي ګوند واکمن دی، د غواوو ساتنې او پالنې لپاره ځانګړي کمېسیونونه رامنځته

په هریانه ایالت کې د غواوو ساتنې لپاره د پولیسو ځانګړی ځواک پر دنده ګومارل شوی دی.

۲۰۱۴ کال کې واک ته د رسېدو پر مهال لومړي وزیر نرېندرا مودي ژمنه کړې وه، چې د غواوو ټولوژنې مخنیوی به کوي.

د هند د ډېرى وګړو (هندوانو) په دین کې غوا سپېڅلې څاروی ګڼل کېږي او په ډېرو ایالتونو کې یې د هغې پر حلالولو بندیز هم لګولی دی



# دمجاهد په مال کې

# الله تعالی برکت اچوي

م سعید

حضرت عبدالله بن زبیررضی الله عنه فرمايي چې زبیر څه وخت میدان جنگ کې ولاړۀ، نوزه يې راوبللم .زه راغلم دهغه په خواکې اودریدم نوویی فرمایل:ای زویه! نن خوبه یاظالم قتل کړی شي یابه مظلوم ووژلی شم اوماته ښکاري چې زه به دیومظلوم په شان ووژلی شم.ماسره دټولونه زیات غم دخپل قرض دی چې آیاځمادقرض اداکولونه وروسته به زمامال پاتې شی؟ ای زما زویه! ته زمامال خرچ کړه اوزماقرض اداکړه اوهغه ددریمې حصې دمال وصیت زمالپاره وکړاوزماددغې دریمې حصې نه يې زماداولادلپاره وصیت وکړ.هغه وویل:چې دغه دریمه حصه مال درې حصې کړه .عبدالله وویل:چې بیا یی ماته دقرض اداکولووصیت وکړ اوویی فرمایل:چې که چېرې ته په څه کارکې عاجزه شی نوزماله مولانه امدادغواړه.دعبدالله بیان دی چې په الله قسم !زه پوهه نه شوم چې دمولانه دهغه څه مطلب دی؟په دې وجه مې ترینه پوښتنه وکړه چې خوږه پلاره!ستامولاڅوک دی؟ویی فرمایل:الله تعالی؛ عبدالله وایی چې په الله تعالی قسم !ماباندې چې کله به دهغه په قرض اداکولوکې څه تنگسیاراتله نومابه ویل:ای دزبیرمولی!ته دهغه قرض اداکړې، نوصرف الله پاک دهغه دذمې قرض اداکړ.حضرت زبیررضی الله عنه په شهادت ورسید،نه يې څه دینارپریښودل اونه يې څه درهم؛ البته دوه ځمکې يې په میدان کې پریښودې چې دیوې نوم پکې غابه ۀ.ددې نه علاوه يې په مدینه منوره کې یوولس کورونه اوبصره کې دوه ،کوفه اومصرکې يې یویوکورپریښود.

دابن زبیررضی الله بیان دی چې دهغه په ذمه دقرض داحال ۀچې کوم سړي به ورسره خپل مال دامانت په طورکیښوده نوځواب به يې ورکړچې دامانت په طوريې نه ږدم. البته دقرض په طوريې اخلم ځکه چې له ماسره ددې مال دخوړلوویره ده.هغه چیرې هم حاکم جوړیدل، ټیکس حاصلول اودکوم شي قبلول خوښ نکړل.دهغه خوښه مشغله داوه چې دنبی صلی الله علیه وسلم ، صدیق اکبر ،فاروق اعظم اوحضرت عثمان غني رضی الله عنهم سره به دجهادمیدان ته تگ کاوه.دعبدالله بن زبیررضی الله عنه بیان دی چې کله مادهغه په ذمه دقرض حساب ولیدنوهغه دوه کروړه اودوه لاکهه ۀ. حکیم بن حزام( رضی الله عنه) ماسره مخامخ شواوویی ویل:چې ماته ووایه چې زمادوروړپه ذمه څومره قرض دی ؟نومااصلي رقم ورته ونه ښوده اورته ومې ویل:یولاک روپۍ دي . حکیم بن حزام وویل:په الله قسم!ماته معلومات ده چې په تاکې ددې داداکولوطاقت نشته. ماورته وویل:چې که زه تاته ریښتیاووایم نو دهغه په ذمه دقرض مقداردوه کروړه اودوه لاکهه روپۍدي .نوحکیم بن حزام ځواب راکړچې په تاکې ددې داداکولوبلکل طاقت نشته.که چیرې ته ددې له اداکولونه عاجزه شوې نوزه درسره همکاري کووم.حضرت زبیر(رضی الله عنه)دغابې ځمکه په یولاک اویازره اخیستې وه چې هغه ماپه شپاړس لاکهه باندې خرڅه کړه .خلکوته مې وویل:دحضرت زبیرپه ذمه چې دچاحق وي نوهغه دې غابې ته راشي .په دې اثناء کې عبدالله بن جعفر(رضی الله عنه ) راغی اوویی ویل:په زبیرباندې زماڅلورلاکهه قرض ۀ،که چیرې ستاخوښه وي نوزه به يې درته پریږدم.نوماځواب ورکړچې نه!موږستانه درقم معاف کول نه غواړو،نوعبدالله بن جعفررضی الله عنه وویل:چې ښه ده ؛داسې وکړه چې دټولونه



وروسته زماقرض اداکړه .په دې مې ځواب ورکړچې داهم نشي کیدای ،نوبیاعبدالله بن جعفروویل:چې ددې ځمکې یوه تکړه ماته راکړه .نوماورته وویل:چې له دې ځای نه تر هغه ځای پورې واخله.درواي بیان دی چې دهغې ځمکې تکړه یې په هغه خرڅه کړه اودهغه دقرض اداکولونه وروسته حضرت عبدالله بن زبیررضی الله عنه حضرت معاویه سره ملاقات وکړچې هلته عمروبن عثمان رض ،منذر بن زهیررض او ابن زمعة ناست ؤ،نوحضرت معاویه رض پوښتنه وکړه چې دغابې دځمکې څومره قیمت ده؟نوعبدالله بن زبیررض ورته وویل:دهرې برخې قیمت تریولاک روپیو پورې ده.حضرت امیرمعاویه ّرضی الله عنه ) بیاپوښتنه وکړه :اوس څوبرخې پاتې ده؟ هغه ځواب ورکړ:څلورنیمې برخې پاتې ده.منذربن زهیر وویل:یوه حصه په یولاک زه اخلم.ابن زمعة وویل:په یولاک یوه برخه زماشوه.حضرت معاویه پوښتنه وکړه :اوس څومره پاتې ده؟ماځواب ورکړچې یوه نیمه حصه پاتې ده .نوویی فرمایل:چې هغه په یونیم لاک باندې زه اخلم.درواوي بیان دی چې بیاحضرت عبدالله بن جعفررضی الله عنه خپله اخیستلې حصه حضرت معاویه رضی الله عنه باندې په شپږلاکهه باندې خرڅه کړه .ددې نه وروسته حضرت ابن زبیررضی الله عنه دخپل پلاردقرض اداکولونه فارغ شونودهغه نورو ورونړو وویل:چې زموږمیراث موږباندې تقسیم کړه .حضرت ابن زبیررضی الله عنه ورته وویل:چې تاسې ته به خپله حصه ترهغه وخت پورې نه ملاویږي ترڅوپورې چې زه پرله پسې څلورکاله دحج په وخت کې دااعلان ونه کړم چې دچاځه قرض په حضرت زبیر(رضی الله عنه ) باندې وي هغه دې موږله راشي چې خپل قرض ورته ورکړم. راوي وایي:چې عبدالله بن زبیررضی الله بیاترڅلوروکلونوپورې دحج په زمانه کې دا اعلان وکړاوڅلورکاله وروسته یې په ورونړوکې میراث تقسیم کړ.دحضرت زبیررضی الله عنه څلوربیبیانې وې.عبدالله بن زبیررضی الله عنه دمال دریمه حصه اخیستې وه .دارنگه هرې یوې بي بي ته دوه لاکهه اولس لس زره روپۍ ورسیدې.لنډه داچې دزبیررضی الله عنه ټول مال پنځه کروړه اودوه لاکهه شو.په دې واقعه کې دمیراث په تقسیم باندې دغورکولونه معلومیږي چې دحضرت زبیررضی الله عنه دمیراث اصل مقداردوه لاکهه کم شپږکروړه جوړیږي. له دې قصې څخه موږته را معلومه شوه چې داټول دالله تعالی له طرف څخه له مجاهدسره دخاص فضل وکرم معامله ده. ځکه چې دده له مال څخه دیولاک روپیوقرض اداکیدل ناشونی ؤ ،نودهغه نه دوویشت لاکهه درهم قرض اداشواودڅلورو بیبیانو نه هرې یوې ته دولس لاکهه درهم میراث کې ورسیدل اودمال ټول مقدارتقریباً شپږکروړه ته ورسید.

# د سولې په نامه له افغانانو څخه

# سیاسي قاچاق نه شي تیریدلای!



لیکنه : مراد أنصار

د معاصرې نړۍ د استعمار بڼه هم له تیر څخه بدله ده، په تیر کې به د یو قوم یا یوه هیواد د استعمار په موخه له زور څخه کار اخیستل کیده خو اوس د زور په ځای زیات له فکري او رواني عملیاتو څخه کار اخیستل کیږي. افغانستان د داسې فکري او رواني عملیاتو په یو تور ډګر بدل شوی دی، د پردیو له لوري ډول ډول فکري او رواني عملیات د دې لپاره روان دي چې په افغانانو خپل اشغال د افغانانو د یوې اړتیا په توګه ومني او داسې ذهنیت ورکړي چې له پردیو څخه پرته افغانان نه ژوندي پاتې کیدای شي او نه متحد او خوندي.

د سولې په نامه پیل شوي پرلتونه او کاروانونه هم د دغه رواني عملیاتو یوه برخه ده ځکه دوی د دې پر ځای چې د جګړې له پیل کوونکي اړخ او اصلي عامل څخه د سولې د کولو غوښتنه وکړي له هغه چا څخه د سولې کولو غوښتنه کوي چې جګړه پرې تپل شوې او له خپلې عقیدې ، خپل ځان او خپلې خاورې څخه په دفاع چې مسلم حق یې دی بوخت دي. د سولې د دغه پرلتونو او کاروانونو له لوري چې کوم شعارونه پورته کیږي، کوم تبلیغات کوي او کوم تبلیغات یې په اړه کیږي د ټولو تمرکز په دې دی چې اشغالګرو ته برائت ورکړي او د اشغالګرو په وړاندې جنګیدونکي داسې یو لوری په ګوته کړي چې په جګړه ټینګار کوي، سولې ته ژمن نه دي او د سولې په اړه غوښتنو ته هیڅ اعتنا نلري.

افغانانو د تیرو څلورو لسیزو له ناخوالو څخه ډیر څه زده کړي دي او د پردیو په اشاره راپورته کیدونکي خوځښتونه ډیر ژر پیژني، څوک ترې سیاسي قاچاق نشي تیرولای، له همدې امله خو د سولې دغه پرلتونه او کاروانونه د سلګونه کیلومترو واټن په وهلو سره تر سلو پورې ونه رسیدل، نه څوک ورسره ملګري شول او نه یې چا داسې ګرم استقبال وکړ لکه د اوربند په ورځو کې د هیواد په ښارونو کې د طالبانو د سرتیرو چې استقبال وشو.

اوسني نظام چې د نړۍ په کچه په اداري فساد کې په لومړۍ درجه کې دی، د افغانستان د بیارغونې په نوم د نړۍ د ملیاردونو ډالرو کومکونو له وهلو، په کلني ډول د ملیاردونو افغانیو د رشوت له اخیستلو، د ملیونونو جریبه ځمکو له غصب وروسته یې د سولې له سپیڅلي نامه څخه د خپلو جیبونو د ډکولو، خپل شهرت د زیاتولو او د خپلو استخباراتي توطیو د پلي کولو لپاره ملا تړلې.

ګډ حکومت او د اوسني نظام پلویان به د سولې له نامه څخه په داسې بده استفاده خپلو مخالفو وسلوالو طالبانو ته هیڅ زیان ونه رسوي خو یوازې داسې بې باوري به رامنځته کړي چې له سولې څخه به نور هم زموږ ګران هیواد ډیر لرې کړي او په خپله به هم په کامله معنی اعتماد له لاسه ورکړي او دا راپیدا شوې بې اعتمادي د طالبانو له هغه اعلامیو څخه چې له درې ورځني اوربند څخه وروسته یې خپرې کړې او د سولې په نامه له بدو استفادو څخه یې پکې زیات شکایت کړی له ورایه ښکاره کیږي.




# د سوبو کال

عمر عمري

له جنګه سترَی په بد حال دی انتظار یې کوئ
نور د کفري نړۍ زوال دی انتظار یې کوئ

حوصله و نه بایلې لوی اللّه ﷻ دې مل دی یاره
طالبه دا د سوبو کال دی انتظار یې کوئ

جانانه ستا به کړي نصرت اللّه!که هرڅو دښمن
ښه په درنو وسلو سمبال دی انتظار یې کوئ

بری د ستاسو دی که تاسې کړئ نېتونه صفا
دا فرمان کړی ذوالجلال دی انتظار یې کوئ

لاندې ټانګونه پاس یې جېټې بیا هم څغلي درنه
نوره بایللی یې مورال دی انتظار یې کوئ

دښمن دِ ولیدو چې مات شو اوس د روغې جوړې
درته یې کړی ګوره سوال دی انتظار یې کوئ

طالب به ښکاري د ولس غېږکې دا خَلْک به وایي
چې رڼو ستوروکې هلال دی انتظار یې کوئ

دغه یو زېری کړي پرتاسو (عمري) له وړاندې
چې تېغر ټول نور د اشغال دی انتظار یې کوئ



# غزل

ښکلې ګلورینې ښایستې ځوانۍ در ځار شولې
ای د توحید سپینې کلیمې ځوانۍ در ځار شولې

ایښې یې په تنده د تاریخ د تن له وینو خال
ستا مینه کې شوې زرې زرې ځوانۍ در ځار شولې

مات شولو نرګس، ریحان، رېدي او ګلابونه ډېر
تاته یې وې سپر خپلې سینې، ځوانۍ در ځار شولې

تللو له پرهر پرهر وجود سره له ژوند څخه
وینې د غیرت ترې څڅېدې، ځوانۍ در ځار شولې

دار ته په خندا ورځي له سر او ځان نه تېر زلمي
بله دې ساتي د دین ډېوې ځوانۍ در ځار شولې

اوس خو دې جانانه خپل دیدار ورته عطاء کړه ته
ښکار د رقیبانو شوې خوږې ځوانۍ در ځار شولې

بېلې شوې درمله ستا له څنګه، په لمبو کې تلې
ربه! تر دیداره دې درتلې ځوانۍ در ځار شولې



# مــات زړه!

در نیسـه مـې، پـه غـیـږه کـې، کــراره، زړه مـې مـات دی
ماښـامه! زړه مـې درد کـوي، سـهاره! زړه مـې مـات دی

تــصویر پکـې د مسـتې ځــوانۍ مــه ګــوره اوس هسـې
اشـنا! ذرې، ذرې لکـه هـیــنداره، زړه مــې مـــات دی

پــر شـونـډو دې ترخــه خبـره، پـــام راتـه را نـــه شي
خـــوږه خـبَــره هــم کـــوه اواره، زړه مــې مـــات دی

چـې مـا پکـې د سـتـړي ژونـد، دمـه را جـوړه نـکـړه
نصیـــبه! د رنـګــونو لـه دې ښــاره، زړه مـې مـات دی

اخـیسـتی رانـه لـوظ چـا د ځـولۍ، ځـولۍ ګـلابـو
که ته بیرتـه راسـتـون نـه شوې بهـاره، زړه مـې مـات دی

یواځــې چیرتـه لـــرې، تلـلی چـا پسـې یـم، ورک یـم
چـې شــاته، شــاته ګورمـه پــه لاره، زړه مـې مـات دی

دردونــه چـې، لـفــظونو کـې رنګـین پـیـلـی نـه شم
خفـه نـه شي کوچیـه سـپینه یـاره! زړه مـې مـات دی!!!

زه خلیـــل همـــراز یـــې ګرځـــوم پـــه جېـــب کـــي
د اشـــنا د لاس ځـــــونډې راباـــــدي ګـــران ده

# سپینې کوترې

اسلام غوا‌ړو، هېواد کې او بیا تا سپینې کوترې
سرونه ږدو د لوی خدای په رضا سپینې کوترې
*
ښکېلاک دی او که ګبر په یوه سلا مو وژني
ډاربږو لیري ګرځو له هر چا سپینې کوترې.
*
دا سپینه ده که راغلې ته به هم اور کې پخه شې
اشغال ده زمونږ ځمکه تر فضا سپینې کوترې
*
کښه به یې شاید چې د چورلکو غږ نه اورې
کښه به یې چې نه اورې غوغا سپینې کوترې
*
د ویښ احساس ښتن به ستا راتګ ته خوشحال نشي
هېواد کې چې مو وي، دا سره بلا سپینې کوترې
*
ګیله مکړه مجبور یو، انقلاب دی او زګار نه یو
که ژوند و سره و به وینو بیا سپینې کوترې
*
د دېن لار کې ور کړې قربانۍ مو ضایع نه شي
الهام وایې: را نشې بې بریا سپینې کوترې

# مدینه منوره

#بسمل

دنیا! لـه دې ځـایـه ښـکلا راغـله الـفـت راغـی
تـا تـه لـه دغـې دروازې نـه انسانیـت راغـی

دا د احـد د شهـیدانـو د سـردار کـور دی
دغـه د بـدر د غـازیانـو د سـالار کـور دی

چې یې د ږیرې لـه اوبـو دلتـه جـهـاد جـوړ شـو
پـه خراسـان کـې د افغـان ښـکلی هېـواد جـوړ شـو




# په جده کې د ډاکټر شفیق ژړا
# که د تمساح اوښکې؟

آصف الله آصفي

ډاکتر شفیق صمیم چې د عالي تحصیلاتو وزارت د معینیت اسلامي معین دی څه موده وړاندې یې په کابل هم د امریکا د سفارت په مستقیمه لارښوونه د دیني عالمانو یوه جعلي غونډه رابللې وه، چې ملیونونه افغانی یې پکې ترلاسه کړې، خو قرباني یې هم ورکړه او هغه دا چې یو ورور یې هم د ځانمرګي برید ښکار شو او آخرت ته تش لاس ولاړ.

شفیق صمیم نه له خپل علم نه چې په شرعیاتو کې یې دکتورا اخیستې عبرت واخیست او نه یې د خپل ورور له مرګه، د فنا کیدونکې دنیا په خوند کې دومره ډوب او مست دی چې د عقل سترګې یې په غبرګو ړندې شوې.

تیره ورځ یې په ریاض کې د دیني علماو په غونډه کې د خپلې وینا په ترځ په ژړغوني حالت کې وویل چې: ((په افغانستان کې کوم داسې څه شته چې د اسلام مخالف دی؟؟؟؟)) او له دې جملې سره په ژړا هم شو.

درنو لوستونکو!

د شفیق د دې خبرې د ځواب قضاوت به تاسې ته پریږدو؟

په مصریانو کې یو متل دی چې وایي: خلینا واقعیین.

یعنې باید په واقعیت سره وغږیږو.

آیا دا اوس حقیقت او واقعیت دی چې په افغانستان کې هیڅ داسې څه نشته چې د اسلام مخالف وي؟ آیا سره له دې چې په شرعیاتو کې څوک دکتورا یا د ډاکټرۍ رتبه ولري، د اسلام مخالف څه نه ویني؟ آیا دا واقعیت دی؟ او حقیقت دی؟ کنه؟ ډاکتر په غبرګو ړوند دی.

راځئ چې ډاکتر شفیق ته هغه واقعیتونه چې سره له علمه یې پرې سترګې پټې کړې مونږ یې ورته په مخ کې کیږدو:

آیا امریکایانو د افغانانو له کورنو ښځې په زور ونه ویستې او په هلیکوپټرو کې یې خپلو بیزونو ته ونه لیږدولې؟

ایا د قرآن کریم بې حرمتي په مکرر ډول ونکړه؟

ایا په بیزونو کې یې فاحشه خانې ندی جوړې کړي او له افغاني نجونو سره زناګانې نه دی روانې؟

آیا دموکراسي یې په افغانستان کې د اسلام پر ځای حاکمه نکړه، آیا دموکراسي د اسلام سره په ټکر کې دنده؟

آیا د امریکایی فوځیانو (یهودو او نصاراو) وجود په افغانستان کې د اسلام مخالف ندی؟

ایا د کابل په ښار او نورو ښارونو کې د USAID لخوا په سترو لوحو اعلانونه تر اوسه ځړیدلی ندی چې د ښایسته افغانی پیغلو انځورونو سره یې یو ځای پکې یې لیکلی دی چې خپل بخت وازمایاست، د هغو پیغلو چې عمر یې له 14 کلنی تر 25 کلنې پورې وي USID سره تماس ونیسئ او د رشد او استعداد زمینه ترلاسه کړئ؟ آیا دا کار د اسلام سره په ټکر کې ندي؟

په لکونو افغاني پیغلې په مؤسساتو او له فحشا ډکو هوټلونو کې د کار او وظیفې په نوم ندی جذب شوي؟ آیا دا د اسلام په سره په ټکر کې کار ندی؟

ایا د امریکا او نورو غربي هیوادونو په سفارتونو کې د وظیفو په نوم افغانی پیغلې ډله ډله تګ راتګ نلری؟

ایا شپه او ورځ په تلویزیونو کې نیمه بربنډې رقاصې چې نڅاوی کوی لکه آریانا سعید، او نوري شفیق صیب نه ویني؟ آیا سترګې یې ګ؛ز نه کوی که په غبرګو ړوند دی؟، آیا د خدای د دی قول مصداق ندي ګرځیدلی چې لهم اعین لا یبصرون بها. سترګي لري خو لیدل پري نه کوي.

آیا ستاره افغان پروګرام د اسلام مخالف پروګرام نه دی؟ ایا ډاکټر صیب شفیق په غبرګو ړوند دی له ستاره افغان نه خبر قدری هم ندی؟

آیا افغاني پیغلې بهرنیو هیوادونو ته د پیلوټۍ او نورو نظامی زده کړو لپاره ډلې ډلې نه استول کیږي؟ آیا امریکایی نارینه جنرالان افغاني نجونو ته نظامي ضبط او پروت نه ورکوي؟ آیا دا د اسلام سره په ټکر کې کارونه نه دي؟ ایا د روباط د زده کړې لپاره یوه ډله پیغلې نورو هیوادونو ته پرته له محرمه وانه استول شوي؟ آیا دا د اسلام سره په ټکر کې عمل نه دی؟ ایا هغوی سره هیڅوک کار نه لری؟ عیاش او فحاش غرب کې به هغوی په امن کې پاک لمنې پاتي شی؟

ایا مفسدو نظامي جنرالان وخت ناوخت پر نجونو جنسي تجاوزات ندی کړي؟ آیا د سیګار هغه راپور د شفیق له



سترګو پټ پاتي شوی چې ویلی وو نظامي جنرالان د هغو ملی اردو عسکرو پر میرمنو تجاوز کوی چی په جګړه کې وژل شوی دی او د مرستو لپاره ورته مراجعه کوي.

آیا د سیګار هغه راپور یې هم هیر شو چې ویلي وو، افغانی نظامی قومندانان په خپلو بیزونو او مرکزونو کې افغانی هلکانو سره لواطت کوی او چیغی یې زمونږ سرتیری اوري خو دا د دی حکومت خپل کلتور دی مونږ پکی د مداخلی حق نه لرو.

آیا پر مسجدونو او مدرسو امریکایانو په مکرر ډول یرغلونه ونکړل؟ ایا دا د اسلام سره په ټکر کی کارونه ندي، ایا په نیمه شپه د محکمې له اجازې پرته د افغانانو پر کورونو وراوښتل د اسلام سره په ټکر کی کارونه ندي ؟

آیا په تلویزیونونو کې د فاحشو سریالونو په خپرولو سره زمونږ ټولنه د فحشا په لور روانه نده؟ آیا دا د اسلام سره په ټکر کی کار نه دی؟

ایا بې دینه خلکو ته روښانفکر ویل د اسلام سره په ټکر کې نه دی؟ او اسلامی فکر لرونکو ته روښانفکر نه ویل څه معنی لری؟

ایا تاسې هغه فلمونه ندی کتلی چې په ټولنیزو رسنیو کې خپاره شوی، چې د امریکایانو په مرکزونو کې بد اخلاقه افغاني ښځې له امریکایی فوځیانو سره په کوم حالت کی لیدل کیږي؟ آیا دا د اسلام سره په ټکر کی کارونه ندی؟

نو اوس دې لوستونکی قضاوت وکړي چې د ډاکټر شفیق ژړا حقیقي ژړا ده او که د هسی د تمساح اوښکی تویول دي؟

او آیا ډاکټر شفیق واقعیت وایی او که د عقل سترګې یې په غبرګو ړوندې دي؟



# دالحدیده نوې جګړه

## او پر سعودي توغندويي بريدونه

شهید زوی

د۲۰۱۵م کال په مارچ میاشت کې چې سعودي عربستان دیمن په کورني جنګ کې ځان ورګډ اودخپلواتحادیانو په ملتیا یې دیمن ددولت په مقابل کې دراپورته شوې ایران پلوې حوثي ډلې پرضد هوایې عملیات پیل کړل نوسعودي عربستان اوملګرو یې ګومان کاوه چې دحوثیانوپرضدعملیات به هسې دیوڅوورځو خبره وي ؛ ډېر ژربه حوثیان له منځه ولاړ شي اودیمن دسعودي پلوي ولسمشر-عبدالرب منصور هادي (چې په ۲۰۱۴م کال کې پر پلازمېنې صنعادحوثیانودقبضې نه پس له یمن نه سعودي ته په تېښتې بریالی شوی و ) واکمني به بېرته پریمن رامنځته شي .

ددې جنګ ۳کلونه پوره اوپه څلورم کال کې ورګډ شوخوحالت بدل نه شواوسعودي عربستان اواتحادیانویې کوم داسې دیادولو وړ پرمختګ ونه کړ چې ددوئ فتح وګڼل شي.

دسعودي ګومان سم نه و اوڅرنګه یې چې فکر کاوه هغسې ونه شوه.

سره له دې چې دسعودي عربستان په مشرۍ کې د۴۰ هېوادونو نه دجوړشوي اتحاد دبمباریو په نتیجه کې حوثیانو درانده تلفات ولیدل خو ډګر یې پرې نښود ؛ نه یې وسله پر ځمکه کېښوده اونه هم تسلیم شول بلکې دتمو خلاف دهرې نه بلې ورځې ته لازیات ځواکمن اومسلح شول .

دخپل دولت پرضد دبغاوت او دسعودي عربستان پرضد دجنګ په تېرو ۳ کلونو کې حوثیانو دسعودي او د یمن پولې ته څېرمه دسعودي پرعسکري مرکزونو او پوستو هم ګڼې حملې کړیدي او دسعودي پرمختلفو سیمو او ښارونو یې ګڼ توغندويي بریدونه هم کړیدي چې اوس پدې توغندويي بریدونو کې ترډېر حده زیاتوالی راغلی دی؛ وړاندې به په میاشت کې دوه یا درې ځلې دا بریدونه کېدل خو اوس په هرې اوونۍ کې درې یا څلور کرته دسعودي پرمختلفو سیمو دحوثیانو له لورې توغندي توغول کېږي.

درياض؛جازان؛ نجران او نورو ښارونو ترڅنګ پرمکې مکرمې هم دحوثیانو له لورې دتوغندويي بریدونو هڅې شویدي او حوثیانو په تېرو وختونو کې په کراتو پرمسجدنبوي او بیت الله دقبضې کولو ګواښونه هم کړیدي.

پدې ټوله نړۍ پوهېږي چې په منځني ختیځ کې ددولتونو پرضد دبغاوتونو او دنظامونو دړنګولو ترشا داسلام دښمنو عناصرو لاس دی.

دا غربي اسلام دښمن ځواکونه چې په سر کې یې امریکا ده بې له کوم توپیره دټولو اسلامي هېوادونو کمزوري کول او پکې دنظامونو ړنګول غواړي ځکه چې دنظامونودړنګېدوسره دولسونوخپلمنځي جنګونه ، دعامو خلکوقتل عام ، دکلیو اوښارونوورانې ، دخپلوسیمونه دملیونونو مسلمانانو بې ځایه کېدل ، فقر ، محتاجي ، دعزتونواوعفتونولوټ کېدل اوډول ډول ذلتونه ملګرې وي چې دټولې اسلامي نړۍ په اړه لویدیځ نن همدا سې ناکاره ارادې لري (الله دې یې پکې ناکام لري).

سره له دې چې امریکا او نور لویدیځ په ښکاره سعودي عربستان خپل دوست ګڼي او دتش په نامه همدې دوستۍ نه په استفادې خپلې موخې او شوم اهداف هم پوره کوي خو دپردې ترشا سعودي ته دهرډول ضرر رسولو هڅې کوي.

غربي ځواکونه هیڅکله هم په دفاعي او اقتصادي لحاظ دسعودي عربستان استحکام او پیاوړتیا نه غواړي او نه ددې اراده لري چې دحوثیانو اوسعودي ترمنځ روان جنګ ودرېږي نو ځکه دپردې ترشاپه دوهم اودریم لاس امریکا اونورولویدیځو ځواکونو

دحوثیانو مرستې ته دوام ورکړیدی او خبره تردې رسېدلې ده چې حوثي ملېشو بالاستیکي توغندي هم ترلاسه کړيدي او ډرون ټیکنالوجي هم ورکړل شویده ؛ دحوثیانو په لاس کې دهمدې توغندو دشتون سعودي ډېر اندېښمن کړیدی چې پرحوثیانو دهوایي بریدونو ترڅنګ یې خپلې دفاع ته هم ډېره توجو کړیده.

دخپل ځان نه ددفاع لپاره دامریکااونورلویدیځ نه وسایلو اخستلو ته اړ دی چې ورسره سم یې فوځي مصارف زخت زیات شویدي او اقتصاد ته یې زیات تاوان رسېدلی دی چې همدا دنړۍ ددې سترشیطان کامیابي ده ځکه چې هم سعودي ته تاوان رسوي اوهم پرې دفاعي وسایل پلوري او له دې لارې په ملیاردونوډالر ترلاسه کوي نو چې دا دواړه اهداف یې ترسره کېږي ولې به داجنګ ودرولو ته پرېږدي؟

دحوثیانو پرضد روان جنګ کې دمصر، او دعربومتحده اماراتو په څېر عربي هېوادونه هم عملاً شریک دي خوددې جنګ ټول مصارف سعودي عربستان په خپل سر اخستي دي؛سعودي عربستان تراوسه پدې جنګ ۲۱۶ ملیارده ډالر مصرف کړیدي چې دا ډېر ستر لګښت دی ؛ددې جنګ ورځنی مصرف ۲۰ ملیونو ډالرو ته رسېدلی دی چې په دوامداره توګه دسعودي داقتصاد لپاره دا مصارف دزغم وړندي.

سره له دې چې سعودي دیمن ۷۰ سلنه برخه ترخپل کنترول لاندې راوستې ده چې دا دسعودي لپاره دیادولووړ لاسته راوړنه ده خو دسعودي اقتصاد ته چې دې جنګ کوم تاوان وراړولی دی نو هغه نه جبرانېدونکی دی.

دحوثیانو پرضد ددې جنګ تاواني اړخونه ډېر دي چې ترټولو زیات داندېښنې وړ یې دسعودي لپاره اقتصادي اړخ دی.

دسعودي په وینادایران له لورې حوثیانو ته دورکړل شویو بالاستیکي توغندو دختنې کولو لپاره سعودي دامریکا نه مصنوعي قمر په کرایه نیولی دی چې میاشتینۍ کرایه یې ۴۵۰ ملیونه ډالر کېږي.

سعودي تراوسه دحوثیانو پرضد ۹۰ زره جنګي پروازونه کړيدي چې پرې ۸ ملیارده ډالر مصرف شویدی.

پدې جنګ کې تر ټولو زیاتې پیسې دحوثیانو له لورې دسعودي پرښارونو دتوغول شویو بالاستیکي توغندو پرختنې کولومصرفېږي  ځکه چې دهرتوغندي دختنې کولو لپاره ۳ پټریاټ توغندي توغول کېږي او دهر پټریاټ توغندي قیمت ۳ ملیونه ډالر دي .

د۲۰۱۵ م کال دمارچ میاشتې نه تردې دمه حوثیانو پرسعودي نېږدې ۱۵۰ بالاستیکي توغندي توغولي دي.

دپیټریاټ توغندو پرته هم سعودي عربستان دروسې نه ۴۰۰ S سستیم او دامریکا نه تاډسستیم اخستی چې په ساتنې او پالنې یې هر کال تر ۱۰۰ ملیونه ډالر مصرفېږي.

سعودي عربستان لګیادی د یوبل پسې لویدیځو هېوادونو سره امنیتي تړونونه هم لاسلیک کوي او سعودي اوس دنړۍ څلورم هغه ستر هېواد ګرځېدلی دی چې دخپلې دفاع لپاره ترټولو زیاته بودیجه ځانګړې کوي.

سعودي دیمن سره ۸ سوه کیلومتره اوږده پوله لري چې پرامنیت او ساتنې یې ډېر زیاتې پیسې مصرفېږي.

رښتیاداده چې داجنګ اوس دسعودي لپاره اعصاب شکن جنګ ګرځېدلی دی ؛ دسعودي ولي عهد محمدبن سلمان (چې عملاً دسعودي عربستان اصل حاکم دی ) پالیسي یې ناکامه اوپه جنګ کې دنه پرمختګ له امله سخت اندېښمن دی ؛ هغه چې دشام ، فلسطین ، لبنان ، اسرائیلو،ایران اوقطر په اړه یې کړنلاره ناکامه اوپدې اړه لا دمخه دسختو انتقادونوسره مخامخ دی دیمن دستونزې نه ځان راویستل غواړي خوترې نه شي راوتلی .

دحوثي جګړه مارې ډلې پر ضد دسعودي اوداتحادیانو دجنګ خوراناکام اړخ دادی چې له درندوبمباریو پرته یې دجنګ لپاره هیڅ پلان نه درلودلو او دوئ ایله اوس پوه شول چې ۳ کاله وړاندې ورته څه پکار و اوکومه لار دکامیابۍ وه چې پرې تللي وای؟

اوس سعودي عربستان اومهم اتحادي یې متحده عرب امارات پدې پوه شول او ایله دې نتیجې ته ورسېدل چې ترڅودحوثیانو درسدلارې نه وي پرې شوې نوکه ۱۰ کلونه نور هم داجنګ دوام وکړي بریالیتوب پکې نه شي ترلاسه کېدای نوځکه یې پرېکړه وکړه چې دعربو په بحیره کې دیمن ترټولومهم الحدیده بندر باید د حوثیانو د قبضې نه آزادکړای شي.

یمن ته ۸۰ سلنه خوراکي مواد او تېل دالحدیده بندر له لارې راوارېدېږي ؛ پدې بندر دحوثي ملېشوقبضه ده اوسعودي ادعا لري

چې له همدې بندره حوثیانوته ایراني توغندي راوړل کېږي چې بیاپرې حوثیان دسعودي یوشمېر ښارونه په نښه کوي او د سعوي امنیت ته یې ستر ګواښ متوجې کړیدی اودهمدې توغندودتاوانونو نه دڅان ساتنې په لارکې سعودي ډېر زیات مصارف کوي

دتېروکابو لسوورڅو راهیسې په الحدیده بندرکې دحوثي ملېشوپر ضد دسعودي له لورې هوايي عملیات روان دي ؛ داسې خبرونه هم خپاره شول چې داماراتواوسعودي نظامي ځواکونو دالحدیده بندر ترخپل واک لاندې راوستلو خو بیا وروسته معلومه شوه چې الحدیده نه بلکې دالحدیده نه ۶کیلومتره لرې هوايي ډګر دوئ له حوثي ملېشونیولی و او الحدیده لاهم دحوثیانو ترکنترول لاندې ده ؛ داهم ویل کېږي چې دحوثیانوترڅنګ داماراتو اوسعودي ځواکونو ته هم درنده مرګ ژوبله اوښتې ده خو دوئ دخپلې مرګ ژ وبلې په اړه له څه ویلو ډډه کوي.

دیمن لپاره دملګرو ملتونوځانګړي استازي Giffrith د جنګ پیل کېدونه وړاندې دواړو اړخونوته خبرداری ورکړی و چې که جنګ اوږد شي نو دیمن اوسېدونکي به د دواګانو، خوراکي موادو او اوبو دسخت کمښت سره مخامخ شي چې له امله یې په یمن کې په سونو زره تنان دمرګ سره مخامخ کېدای شي نوباید یمن دملګرو ملتونو ادارې ته په واک کې ورکړل شي او دواړه اړخونه ورنه ووځي. خودملګروملتونو داستازي خبره یولوري هم ونه منله ځکه چې دعامو یمنیانوغم دیولوري سره هم نشته بلکې هرلوري سره دخپلې قبضې غم دی اوهریولوری دخپلې قبضې په هکله خوش باوره و؛ حوثیان مطمئن وو چې قبضه یې په اسانه له منځه نشي تلای او سعودي ګومان کاوه چې ډېر ژر به دزور له لارې دحوثیانو قبضه له منځه یوسي .

دجنګ په ړومبۍ ورځ سعودي او امارات دخپلې بریالیتوب په اړه دومره مطمئن وو چې ویل یې دحوثیانو لپاره بله یوه لار هم نشته یابه له الحدیده وځي اویابه تسلیمېږي وسلې به په ځمکه ګدي خو حوثیانو دایوه هم ونه منله ؛ په سیمه کې یې ښه زیات ماینونه ښخ کړل او دسیمې نه ونه وتل ؛ داماراتو اوسعودي فوځ دالحدیده نه ۶ کیلومتره لرې هوايي ډګر ترخپلې ولکې لاندې راوست اوپه ډېر و ځایونوکې یې حوثي فوځي ډلې ترخپلې محاصرې لاندې هم راوستې خوحوثیان په شا نه شول او نه یې دالحدیده قبضه پرېښوده ځکه چې دهوايي ډګر په پرتله بندر زیات مهم دی .

حوثیان دوسلوجوړولو کومه فابریکه نه لري نوطبعي ده چې بهرنۍ وسلې په لاس کې لري اوپرې دسعودي خلاف جنګېږي ؛ دسعودي او اماراتو په لاس کې هم دفرانسې اوبرتانې عصري وسلې دي اوله اسمان نه یې دامریکا سپوږمکۍ مرسته کوي او دحوثیانو دنقل اوحرکت نه یې خبروي ؛ نو دواړو لوروسره دبل چاوسلې اومرستې دي او دجنګ په دوام کې دبل چا اهداف پوره کېږي خوتاوان یې ټول غریبو یمنیانوته رسېږي.

دیمن اوسنی حالت دیو ستر بشري ناورین پر لور روان ښکاري ؛ دخوراکي موادو ، دوا اونور داړتیا وړ څیزونوتر څنګ دلته داوبوهم ډېر سخت کمښت دی او دملګرو ملتونو ادارې دلته دسترې هیضې درامنځته وېره ښکاره کړیده .

له حملې وړاندې سعودي او اتحادیانو یې اعلان کړی و چې دیمن ولس ته دبشري مرستو درسولو په موخه به دالحدیده په شمول دټولو بندرونو دخلاصولو لپاره اقدامات کوي او هڅې به وکړي چې دا بندرونه دشپې یاورځې په کومې برخې کې بند نه شي پاتې ؛ خوپه الحدیده دحملې نه پس داهیلې هم له منځه ولاړې .

دحوثیانو دتوغندوي بریدونو او دیمن دروان حالت ترڅنګ په سیمې کې دایران او ترکې نفوذ او ددې دواړو هېوادونو یو بل ته نزدیکت هم سعودي دڅان لپاره ستر خطر ګڼي؛په جبوتي کې دامنیت شورى دغړو هېوادونو او جاپان ترڅنګ ترکې هم خپله فوځي اډه جوړه کړیده؛ترکیه په صومالیه کې هم فوځي اډه لري او دسوډان په یوې جزیرې کې هم دفوځي اډې په جوړولو بوخته ده.

اودسعودي بله کناره دفارس خلیج دی چې پکې ایران حضور لري ؛ په عراق ،شام ، یمن اولبنان کې دایران نفوذ هم دسعودي لپاره سخت داندېښنې وړ دی؛ دایران دنفوذ دختمولو لپاره سعودي ډېرې هڅې کوي خوپکې تر اوسه ندی بریالی شوی اودبریالیتوب څه نښه یې هم نه ښکاري .

دا ټولې خبرې چې رامخې ته کړو نو ددې شدیده اړتیا ده چې سعودي په خپلې بهرنۍ تګلارې بیا له سره غور وکړي؛ سعودي بایدبې له استثناء دټولو اسلامي هېوادونو سره خپل روابط ښه کړي ؛ دسولې لار خپله اوجنګ ته دپای ټکی کېږدي او په راتلونکې کې دټولو هغو اقداماتو نه ځان وساتي چې په نتیجه کې یې دکوم اسلامي هېواد سره دجنګ رامنځته کېدو حالت راپیدا کېږي.

# آتش بس و نقش منفی رسانه ها

حبیبی سمنگانی




نقش رسانه های استعماری غـرب هیچگـاه و در هـیچ جـا ستودنی نبوده است، یگانه هدف از ایجاد این رسانه ها اینست که سیاه را سفید، سفید را سیاه، خوب را بد، بد را خوب، حقیقت را دروغ و دروغ را حقیقـت جلـوه بدهند، شعار ظاهری و نمایشی چنین رسانه ها بی طرفی، واقعیت گویی و بشر دوستی است. اما در حقیقت، حرف حرف شان حکایت از طرفداری می کند، هر دروغی را بخواهند واقعیت جلوه می دهند و واقعیت ها را نادیده می گیرند، هر چه به بهانهٔ بشر دوستی تنها به غربگرایی می پردازند، یعنی هر چه را غربی ها می کنند بشر دوستانه است و دیگران باید ازان پیروی بکنند و یا به تعبیر آسان تر، تنها فرهنگ غرب نماد بشر دوستی است و بس.

نقش این رسانه ها در افغانستان به ویژه پس از تهاجم نظامی امریکا و ناتو در سال ۲۰۰۱م هرگز سازنده و مثبت نبوده است، حتی افغان ها بالعموم به زودی درک کردند که ازین رسانه ها تنها به حیث ابزار جنگ فرهنگی امریکا و غرب بر علیه ملت مسلمان افغانستان استفاده می شود. فاجعه های بزرگ بشری که در اثر جنایات جنگی امریکا و همنوایانش در ۱۷ سال اخیر در افغانستان رخ داد همواره از چشم این رسانه ها پنهان ماند، رسانه های استعماری همیش از روی یک هدف مشخص تلاش کرده اند دیدگاه طائفهٔ کوچکی را به حیث نمادِ خواسته های ملت افغان به جهان جلوه بدهند، این رسانه ها به اجتماعات چند هزار نفری افغان ها بر خلاف امریکا و ناتو التفاتی ندارند، در تلاش آن یک نفری هستند که از فرهنگ اسلامی و افغانی بغاوت کرده باشد، این رسانه ها وظیفه دارند چنین نفرهای را پیدا و به سازمان های خارجی معرفی بکنند تا از سوی آن ها تقدیر شود، سپس همین رسانه ها باید آن چند نفر را به حیث شخصیت های مبتکر و به عنوان اینکه از فلان سازمان غربی مدال دریافت کرده است برای سائر افغان ها الگو بسازند.

قابل ذکر است که نقش رسانه های مزدور از رسانه های استعماری هم بدتر است. این رسانه ها ظاهرا داخلی و یا افغانی پنداشته می شوند و لیکن برای همگان عیان است که هر یکی این رسانه ها، سپانسر-های خارجی دارند و حتی در بعضی صورت ها صد در صد مصارف شان از سوی سفارت های خارجی پرداخته می شود، مسئولین و کارگران این رسانه ها نه تنها با ضعف استعداد ژورنالستی مواجه هستند بلکه (بر خلاف رسانه های استعماری) حتی دارای جزوی ترین اختیار هم نیستند، ایشان تنها مؤظف هستند به آنچه از سوی سپانسران امر می شوند کورکورانه انجام بدهند و یا آنچه را رسانه های استعماری انجام می دهند کاپی و تکرار بکنند.

رسانه های استعماری و مزدور، وقاحت و رسوایی تازه ای شان را در قضیهء آتش بس به نمایش گذاشتند. امارت اسلامی در اعلامیهء خود و بعدا محترم ذبیح الله مجاهد (سخنگوی امارت اسلامی) در مصاحبه های خود تصریح کرد که آتش بس سه روزهء ما واکنش به آتش بس رژیم کابل نیست، بلکه هدف ازین آتش بس آسایش مردم در سه روز اول عید است، اما رسانه های مذکور به گونهء قصدی چنان وانمود می ساختند گویا آتش بس به توافق هر دو جانب صورت گرفته است. هدف آن ها ازین کار فشار آوردن بر امارت اسلامی بود، گویا آتش بس به توافق هر دو جانب صورت گرفته است و حالا چون رژیم کابل مدت آتش بس را تمدید کرده است باید طالبان نیز تمدید بکنند، ظاهر است که امریکا و رژیم کابل در قضیهء آتش بس نیز از رسانه ها برای رسیدن به هدف خود به حیث ابزار استفاده کردند.

آتش بس سه روزهء طالبان، بدون شک نتائج خوبی با خود داشت. مثلا این ادعای امریکا و رژیم کابل بی اساس ثابت شد که بیش از ۲۰ گروه مخالفین مسلح در افغانستان فعالیت دارند، یا اینکه طالبان در داخل خود چند گروه هستند و از مقام واحد فرمان نمی گیرند. همه دیدند که مجاهدین به سرکردگی امارت اسلامی متحد و یکپارچه بوده اند و به فرمان امیر واحد شان بدون چون و چرا جنگ را متوقف ساختند و پس از سه روز اول عید دوباره از سر گرفتند. حالا مناسب بود که رسانه ها این را یک نکتهء مثبت و امیدوار کننده جلوه می دادند، زیرا گفتگو و مذاکرات با یک گروه از هر لحاظ آسان تر است از گفتگو و مذاکرات با گروه های متعدد، اما رسانه های استعماری و مزدور از نمایش وحدت و یکپارچگی طالبان چنان سراسیمه شدند که دیگر از همه جوانب مثبت آتش بس صرف نظر نموده به این تبلیغات دروغین رو آوردند که مقامات طالبان در موضوع آتش بس دچار اختلافات شده اند، هزاران تن افراد طالبان به شهرها آمدند و پس برنگشتند و چطور و چنان .

از لحظهء نشر اعلامیهء امارت اسلامی در مورد آغاز آتش بس تا روز سوم عید، رسانه های استعماری و مزدور تحت عنوان اینکه «طالبان چرا آتش بس کردند ؟» به نکته های منفی پرداختند که گویا طالبان از جنگ خسته شده اند، طالبان به پیشنهاد اشرف غنی سر نهادند، طالبانی که به شهرها پایین شده اند از برگشت به میادین جنگ انکار کرده اند و و و.........، اما روزی که امارت اسلامی از تمدید آتش بس انکار کرد، همین رسانه ها بود که این بار زیر عنوان اینکه «طالبان چرا آتش بس را تمدید نکردند ؟» کوشیدند به تحریف اذهان بپردازند که گویا طالبان به اختیار خود نیستند، طالبان باید آتش بس را برای درازمدت تمدید می کردند و و و.........، اما واقعیت اینست که آتش بس سه روزهء طالبان همه تلاشهای هفده سالهء آن ها را نقش بر آب ساخت. رسانه ها به این باور بودند که مردم در نتیجهء پروپاگندهای منفی ما از سایهء طالبان هم هراس داشته باشند، اما به گونه ای که مردم از طالبان در شهرها و روستاها استقبال کردند، پرچم سفید را برافراشتند و شعارهای مرگ بر امریکا را زمزمه کردند، امریکا، رژیم کابل و رسانه های زیر دست آنان را وحشت زده ساخت و آنان پی بردند که طالبان نه تنها در عرصهء نظامی بلکه از لحاظ محبوبیت مردمی نیز برنده و پیشتاز هستند.



# د جګړې په اور کې

## د امریکا کاغذي سوله

م عبد الهادي

امریکا په افغانستان کې په تېرو ۱۷ کلونو کې پر افغان بې ګناه او بې دفاع ولس د ظلم او وحشت سرچپه مېچنې وګرځولې. د هر ډول سپکو او درنو وسلو ازموینه یې پرې وکړه، هر ډول پوځونه یې په افغانستان کې وازمویل او پر افغان ولس یې په هېڅ ډول بمباریو صرفه ونه کړه. بیا هم په ډېره سپین سترګۍ سره وایي چې په افغانستان کې سوله غواړو، طالبان باید له افغان حکومت سره سوله وکړي.

درې میاشتې دمخه، ټرمپ سپینه ماڼۍ کې یوې غونډې ته ویلي و چې پر طالبانو به جنګي فشار راوړي څو سولې ته غاړه کښېږدي.

خو ټرمپ چې په کابل او ولایاتو کې د طالبانو لخوا پرلپسې مرګوني بریدونه ولیدل، هغه کړې وینا ترې له یاده ووتله او بې له ځنډه یې دفاع وزارت ته په افغانستان کې د خپلو پوځونو د قوماندان نیکولسن د ګوښه کېدا امر ورکړ.

افغان ولس د امریکا تر اشغال دمخه، د روسانو په سلګونه پلانونه د هغوی له ذهنه په خپلو کامیابو بریدونو ایستلي وو. روسانو په افغانستان کې د جګړې لپاره ترسیم کړې خریطې له ځان سره خاورو ته یووړې.

افغان مجاهد ولس امریکایي جنرالان هم د روسانو په برخلیک اخته کړل. د ترمپ لخوا د جنوبي اسیا لپاره نوې پالیسي او په افغانستان کې پر طالبانو د جګړې له لارې د فشار راوړلو ارمان به هم، ښایي، له ځان سره ګور ته یوسي.

امریکایي چاروکي نړیوالو ته څرګندوي چې دوی په افغانستان کې امن او سوله غواړي، خو پوځي جنرالان یې چې په پنټاګان کې په افغانستان کې د ورسپارل شوې دندې میاشتنی راپور وړاندې کوي، یواځې او یواځې پر افغان ولس د شپنیو عملیاتو او هوایي بمباریو شمیره مخې ته کښېږدي او له شپنیو عملیاتو او هوایي بمباره پرته ورسره نور څه نه وي چې د پنټاګان غونډې ته یې وړاندې کړي.

### په افغانستان کې د امریکا د هوایي قواوو مرستیال، قوماندان جنرال لینس بنچ

تېره ورځ په افغانستان کې د امریکا د هوایي قواوو مرستیال، قوماندان جنرال لینس بنچ، په پنټاګان کې یوې خبري غونډې ته په افغانستان کې د خپلو کړنو او معلوماتو په اړه وویل: د کمکي اختر په ورځو کې تر اوربنده دمخه مو په داسې حال کې چې افغان پوځونه هم په جګړه کې راسره شریک وو، پر وسله والو طالبانو ۱۵۴ بریدونه کړي او د طالبانو ۱۹ مهم مرکزونه مو ویجاړ کړي دي.

په پنټاګان کې د جنرال بنچ له ویناوو داسې بریښي چې هغه په افغانستان کې د کاغذي سولې لپاره یوه برخه جګړه او درې برخې تبلیغات کوي څو افغان ولس، طالبانو او نړیوالو ته وښیي چې موږ پر طالبانو د هر ډول فشار راوستلو توان لرو.

خو طالبانو د جنرال بنچ ادعا هم رد کړې ده. د سیاسي چارو شنونکي د جنرال بنچ راپور ته په افغانستان کې د خیالي پولیسو د تشکیل په سترګه ګوري، چې پنټاګان ته خیالي راپورونه وړاندې کوي.

جنرال بنچ د پنټاګان په خبري غونډه کې د ټرمپ لخوا د جنوبي اسیا لپاره د نوې تګلارې ستاینه وکړه او د غونډې برخه والو ته یې څرګنده کړه چې موږ پر طالبانو ۱۵٤ بریدونه د ټرمپ د هغې تګلارې پر اساس کړي دي چې پر افغان ولس یې د بمباریو واک راکړی دی.

جنرال بنچ چې په افغانستان کې د ټرمپ د نوې تګلارې له مخې پر طالبانو د ۱۵٤ بریدونو یادونه کوي، بیا نو د امریکا کاغذي سولې ته څه اړتیا ده چې افغان حکومت یې د ماشومانو په څېر د (مم) په تمه ساتي.

افغان ولس د تېرو اشغالګرو، تېرو نظامونو بمباریو او کاغذي سولې ته په خپل افغاني غیرت او پولادي همت ځوابونه ورکړي دي. دا ډول به یې د ټرمپ د نوې تګلارې په مقابل کې هم وکړي او د دې کاغذي سولې په نامه د رواني اوږدمهالې جګړې پلان به ټرمپ، مشاورین، متحدین یې، استخبارات او جنرالان یې له ځان سره خاورو ته یوسي.





# افغانستان د امریکا د وحشتونو پر ډګر بدل دی

ویس شفیق

یوې امریکایي ورځپاڼې «ستار اینډ سټرایپس» لیکلي چې امریکا په افغانستان کې نوې وسلې ازمایي، دغه ورځپاڼه زیاتوي چې امریکا په افغانستان کې خپلو پوځیانو ته د یوې نوې وسلې ازموینه ورکوي، دغه وسله دا یو ډول مرمۍ فیر کوي چې نښه شوی کس وژني نه خو مرمۍ له لګېدو سره ګاز تولیدوي چې سړی بېهوښه کوي.

په لنډو ټکیو کې په دې کې کیمیاوي مواد کارول شوي چې د روغتیایي چارو کارپوهان یې د سرطاني او نورو خطرناکو ناروغیو سبب بولي.

له بده مرغه په ریښتینې معنا له امریکا سره امنیتي تړون د افغان ولس لپاره نه یوازې د جګړو او مرګونو نوې دروازې پرانیستې، بلکې عملاً یې هېواد د یوه لوی ځواک د جنګي ماشین د تجربو پر ډګر بدل کړ.

وړم کال پر اچین ولسوالۍ د «مور بم» له کارولو وروسته د امریکا مرستیال ولسمشر مایک پنس په خپله مرکه کې وویل چې موږ د دې بم د کارولو له مخې شمالي کوریا ته پیغام ورکړ. هماغه وخت دغه راپورونه هم خپاره شول چې د ننګرهار د اچین ولسوالۍ طبیعي جوړښت د شمالي کوریا له جغرافیې سره ډېر ورته والی لري.

که په هېواد کې د سرطاني ناروغیو کچه له پخوانیو کلونو سره پرتله شي له ورایه ښکاري چې زموږ د هېواد ژوند او طبیعي چاپېریال له سخت خطر سره مخ دی. دا چې پخپله امریکایي قوماندان ډېر په ویاړ دا اعلان کوي چې موږ په یوه کال کې تر ټولو زړو زیات بمونه کارولي دي، په دې کې چې د کیمیاوي هغو وسلو کارول هم ور شامل شي چې د نړیوالو قوانینو له مخې یې کارول منعه دي، طبیعي ده چې افغانستان به په هدیره او کنډواله بدلېږي.

دا چې د جان کیري په نوښت د جوړ شوي حکومت مشرتابه د لوړې پر دوهمه ورځ دغه تاریخي جفا وکړه او له امریکا سره یې داسې امنیتي تړون لاسلیک کړ چې هېڅ باضمیره انسان به یې و نه مني، طبیعي ده چې د امریکا په ټولو وحشتونو او جنایتونو کې همدغه چارواکي شامل دي.

خو اوس چې بیا بیا دغه بحثونه او پوښتنې په ډېرو سیاسي او دولتي ارګانونو کې مطرح شوې چې امنیتي تړون د افغانستان لپاره له مرګونو او بدمرغیو پرته بله ګټه نه لري. دا اړتیا شته چې په ټوله کې له امریکا سره پر امنیتي تړون له سره غور وشي. که په دغه بڼه د امریکا وحشتونه دوام مومي او په ولس کې یې د مخنیوي لپاره یو رسا خوځښت را پورته نه شي، افغان ولس به د یوه لوی ځواک د موخو قرباني شي.

# د روان برحق جهاد مغرضو

## منتقدينو ته ځوابونه !!

وروستۍ برخه

مفتي محمد سعيد افغان

ټولو افغانانو ته جوته ده چې دافغانستان په زياتره سيمو او علاقو کې طالبان شرعي فيصلې کوي ،په داسې حال کې چې تراوسه پورې دهيڅ دعوه په حکومت کې نه ده حل شوې ،ځکه چې دطالبانونظام شرعي نظام دی اودهيواد په زياتوسيموکې واک هم ددوی په لاس کې ده.نولهذاد اسلامی امارت طالبانو او مجاهدينو ته د بغاوت نسبت علمی اوسياسی تيروتنه ده ځکه چې ددين له نوم څخه په استفادې سره د غلطو تعبيرونو په واسطه د دنيا د ترلاسه کولو په خاطر د عادل او شرعي پاچا په خلاف پاڅون او مخالفت کوونکي ته باغي وايي ، چې همدا معنا د باغي له لغوي او اصطلاحي تعريفونو څخه هم څرګنديږي ، مګر د غير شرعي او ظالم پاچا په خلاف پاڅون ته بغاوت نه وايي .

علماء کرام وايي : څوک چې په نيکوکارونو امر او له بدوکارونو څخه منع کوي ، دقران کريم او نبوي احاديثو ملاتړکوي،فيصلې يې په انصاف ولاړې وي.په خپله مدعی کې رښتينی وي ، نوموړی له باغيانو څخه نه شمېرل کيږي بلکه هغه څوک باغيان دي چې د ده مخالفت کوي . که په ژور نظر اکثره اوسنيواسلامي هيوادونو ته ځير شو؛نو مالومه به شي چې هلته تش په نوم اسلامي نظامونه حاکم دي، چې په حقيقت کې داسلام د دښمنانو او د داخلي منافقانو په مرسته او کومک حکومت کوي، له دې ډول حکومتونواونظامونوسره مرسته اوهمکاري کول په بنيادي ډول يو باطل عمل دی. له همدې امله يې تائيد او په اړه يې بې تفاوته پاتې کېدل د اسلامي شريعت څخه مخالف عمل دی.

ځينې خلک وايي چې دملي اردوژل نارواDI ،ځکه چې هغوی دهيوادحفاظت کوي.

ددې خبرې په ردکې دومره وايم چې دملي اردو عسکرد خارجيانو اجير عسکر دي خپلواکي نلري اودصليبيانودفاع کوي اوهمدا له دوی سره په ډاګه دوستي ده، له دې څخه شريعت منع کړې ، او دا يې تر ټولو ستر کفر بللی دی چې په دې سره انسان د اسلام له دائرې څخه وځي . الله تعالی فرمايي: "وَمَنْ يَّتَوَلَّهُمْ مِنْكُمْ فَاِنَّه مِنْهُمْ" که له تاسې څخه څوک هغوی خپل ملګري نيسي ، نو بيا هغه هم په هماغو کې شميرل کيږي . علامه قرطبي وايي : د (فإنه منهم ) مانا داده چې د هغوی حکم هم د دوی په څير دی دوی سره هم دښمني د هغوی په څير واجب ده او لکه څنګه چې د هغوی لپار ه جهنم واجب دی د دوی له پاره هم واجب دی .

که چيرې د مشرکينو لخوا يومسلمان دې ته اړکړی شوی وي چه دمسلمانانو په خلاف له دوی سره جنګ ته ووځي، نو دې ته هيڅ اعتبار نشته، ځکه دا مسلمان کولی شي چې له دې مجبورکولو وړاندې د دوی د واک له سيمې ووځي، د ده له پاره هيڅ عذر نشته، او دا هم په دنيا او اخرت کې د هغوی په حکم کې دی .

امام قرطبي رحمه الله تعالی په خپل تفسير کې له عکرمه رضی الله تعالی عنه څخه روايت کوي وايي : په مکه کې يو شمير خلکو اسلام راوړ ، مګر هجرت يې ونه کړ، مشرکانو هغوی په زور ځان سره بدر ته راوستل، يو شمير هلته د مسلمانانو لخوا ووژل شول ، نو په اړه يې الله تعالی دا ايت نازل کړل: اِنَّ الَّذِيْنَ تَوَفَّاهُمُ الْمَلَائِکَةُ ظَالِمِيْ اَنْفُسِهِمْ قَالُوْافِيْمَ کُنْتُمْ قَالُوْا کُنَّامُسْتَضْعَفِيْنَ فی الْاَرْضِ قَالُوْااَلَمْ تَکُنْ اَرْضُ اللّٰهِ وَاسِعَةً فَتُهَاجِرُوْا فِيْهَا فَاُولٰئِكَ مَاْوَاهُمْ جَهَنَّمُ وَسَاءَتْ مَصِيْرًا(النساء ۹۷) ژباړه : کومو خلکو چې پر خپلو نفسونو (د هجرت په نه کولو

) ظلم كاوه ، پرښتو لـه هغـوی څخـه د ساه اخستلو په وخت كې پوښتنه وكړه چې؛ تاسې په څه حـال كـې اختـه وئ؟ هغوی ځواب وركړ چې! مونږ په ځمكـه كې كمزوري او مجبـور وو، نـو پرښـتو وويل : ايا د خدای زمكـه پراخـه نـه وه چې تاسې پـه هغـې كـې هجـرت كـړی وای؟ دا هغه خلک دي چې استوگنځای يې دوزخ دی او هغه ډير بد اسـتوگنځی دی .

هغـه څـوک چـې بې وسـه وي او مجبـور كـړی شي اللـه تعـالی هغـوی مسـتثنی كـړي پـه اړه يـې فرمـايي : اِلَّاالْمُسْتَضْعَفِيْنَ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِوَالْوِلْدَانِ لَايَسْتَطِيْعُوْنَ حِيْلَةً وَّلَايَهْتَدُوْنَ سَبِيْلًا * فَأُولٰئِكَ عَسَى اللّٰهُ اَنْ يَعْفُوَ عَنْهُمْ وَكَانَ اللّٰهُ عَفُوًّا غَفُوْرًا (النساء ۹۸) ژباړه : هـو! كـوم نارينـه ، ښـځې اوماشـومان چـې پـه رښـتيا بـې وسـه دي اود وتلوكومـه لاره او وسـيله نه مومي هغوی مستثنا دي. نو كېدای شي الله تعالی هغوی ته ښښـنه وكـړي ، الله لوی ښښوونكی او تېرېدونكی دی .

كه چيرې دغه ډول خلک مجبـور كړی شي او د مسلمانانو په خلاف جنگ ته بوتلل شي نو؛ مسلمانانو تـه دا حكـم دی چې په دوی به پرې گذار نـه كـوي، نه به يې هدف گرځـوي او نـه بـه ورتـه تكليـف رسـوي ، او كـه مجبـور كـړی شويو خلكو مسلمانان هدف گرځـول نـو مسلمانانو له پاره هم روا ده چې گـذار وربانديې وكړي خو وخت له سره به مسلمان جنگيالي پر هغوی وار نه رومبی كوي .

كه چيري يې مسلمانان په مرگ اويا هم په زنداني كولو اخطار سره مجبورول، نـو پـروا نـه كوي ځكه د دوی وينې دخپلو نورو مسـلمانو ورونولـه وينوڅخـه قيمتـي نـه دي،دكـافرو لخـوا مجبوركول اگركه يوعذردی مگر دومره هم نه ده چې ديو مسلمان وينه دې توی كړي، سره لـه دې چې د دواړو وينې په عـزت او احـترام كـې سره برابـرې دي.كـه چـيرې يـو كـس د بـل لخـوا د يومسلمان په وژلو اړ كړی شو نو دعلماء كرامو په اتفـاق سره د هغـه وژل ورتـه روا نـه دي، كـه چيرې يې هغه ته دمرگ اخطار وركړ بيا هم نشي كولای چې مسلمان ووژني ځكه د بـل مسـلمان په مرگ به خپل ځان له مرگه نه خلاصوي .

كه چيرې يو مسلمان د كفارو لخوا د مسلمانانوپه خلاف جنگ ته مجبوركړي او يـا ورتـه د زنداني كيدو اخطار وركړی شي،نودا واجب ده چې دا مسلمان بايد دځـان لـه پـاره زنـدان غـوره وگڼي او له كفاروسره دې دمسلمان په خلاف نه دريږي،كه چيرې د كفارو د لښكر د زياتيدو لـه پاره د هغوی په لښكر كې ووت ، او د مسلمانانو لخوا ووژل شو ،پـه مسـلمانانو يـې هـيڅ گنـاه نشته،ځكه هغوی ته دا ممكنه نه ده چې د جنگ په حالت كې دې دا مسلمان له هغوی جدا كړي . او همدا راز مسلمانان د مجبور كړی شويو او نورو خلكو تميز نشي كـولای، كـه چـيرې هغـه زمونږ لخوا ووژل شو؛ مونږ به د الله جل جلاله له لوري معـذور او د اجـر مسـتحق يـواو دهغـه معامله به دهغوی د نيتونو په بناء وي . مجبور خلک كه چيرې د ځان د خلاصون تـوان نـه لـري نودقيامت په ورځ به يـې حشردخپلو نيتونـو پـه بنيـاد وي،كـه چـيرې يـې نيـت كـې ديـن سره خواخوږي وه، دده او د يو مسلمان مرگ به سره برابر وي .

ځينې خلک دافغانستان اوسنی حكومت داهل عدل حكومت بولي ، وايي چې د اهل عـدل شرايط پكی شته، دې حكومت ته جايز دي چی له كفارؤ څخه مرسته وغواړي.

ددې خبرې په ځواب كې به دومره ووايوچې د افغانستان موجوده حكومت د سـيكولريزم، سوسياليزم،امپراليزم اونيشنلزم شخصيتونو څخه جوړشوی دی ديته اهل عدل ويل يو سياسـی اوشرعي اشتباه ده ځكه چې دوی خپلواكی نه لری اوبله خوا له كفارو څخه مرسته ، په هغـوی باور، اوله هغوی مشوره اخستلو باندی افتخار كوی. اوهمدارنگـه دا حكومـت دظلـم حكومـت دی،دخلكوپه كورونوچـاپې اچـوي مسـلمانان شـهيدان كـوي ،مدرسـې ړنگـوي او...... نودظـالم حكومت سره مرسته اويوځای والی په ظلم كې شريک كيـدل دي، دظـالم اوفاسـق حكومـت پـه خلاف خروج اوبغاوت نه يوازې داچې جايزدی؛بلكه فرض اولازم دی.په دې شرط چـې كاميـاب اوگټورپـاڅون اوانقـلاب وي ،دظـالم اوفاسـق حـاكم پرځـای دمتقـي ،عـادل اوصـالح حـاكم پـه راوړلـومنتج شي اودبغـاوت نتيجـه صرف دنفوسـوقتلان اودځواكونوابتـه كـول اوضـياع نـه وي(كتاب المبسوط ۱۰ج ۱۲۵مخ امام السرخسي )

الله تعالی فرمایي: "یَااَیُّهَا الَّذِیْنَ امَنُوْا لاَ تَتَّخِذُوْا بِطَانَةً مِنْ دُوْنِکُمْ لاَ یَاْلُوْنَکُمْ خَبَالاً وَّدُّوْا مَا عَنِتُّمْ قَدْ بَدَتِ الْبَغْضَاءُ مِنْ اَفْوَاهِهِمْ وَمَا تُخْفِی صُدُوْرُهُمْ اَکْبَرُقَدْ بَیَّنَّا لَکُمُ الْاٰیَاتِ اِنْ کُنْتُمْ تَعْقِلُوْنَ"((آل عمران 118). ژباړه: ای مؤمنانو!دخپلې ټولنې له وګړیوڅخه پرته له نورو سره خپل رازونه مه وایاست، هغوی ستاسې د ورکولو د هیڅ فرصت څخه ګټه اخستل له لاسه نه ورکوي،اوتاسې ته چې په هرڅه زیان اړوي، د هغو خوښیږي،دهغوی دزړه دشمني له خولې څخه راوځي، او څه چې هغوی په خپلو سینوکې پټ ساتلي دي هغه له دېنه هم زیات دي،مونږ تاسو ته په ډاګه دا څرګنده لار ښوونې کړېدي که تاسې پوهه لرئ، نوپه اړیکوساتنه کې له پاملرنې کارواخلئ .پس پورتنی ایت کریمه دکفارو پټ مکرونه، فریبونه،دسیسې، بغض، خیانت، اذیت او تدبیرونه ښه واضح کړې هغوی دمسلمانو له اعتمادڅخه سوء استفاده کوي، او دخپلو دسیسو او پروګرامونو په پلي کولو سره هڅه کوي مسلمانانوته تکلیف ورسوي. امام احمدرحمه الله تعالی له ابوموسی الأشعري رضي الله تعالی عنه څخه روایت کوي فرمایي:ماعمر رضي الله عنه ته وویل:زه عیسوي لیکوونکی لرم ! هغه وویل : ولې ؟ هلاک شې!تادالله تعالی دا وینا نه ده اورېدلې؟ چې فرمایي:"یَااَیُّهَا الَّذِیْنَ امَنُوْا لاَ تَتَّخِذُوا الْیَهُوْدَ وَالنَّصَارى اَوْلِیَاءَ بَعْضُهُمْ اَوْلِیَاءُ بَعْضٍ " (المائدة:5).

ژباړه : اي مؤمنانو ! یهود او نصاری ملګري مه نیسئ! دوی په خپلو منځو کې سره ملګري دي.ولې دي یومسلمان نه نیوه؟ ماورته وویل: ای امیرالمؤمنین! زما یې له لیکلو سره کاردی دین یې خپل دی ، هغه وویل : زه هغه چا ته قدر نه ورکوم چې الله تعالی سپک کړی وي ، هغه چاته عزت نه ورکوم چې الله تعالی ذلیل کړی وي،هغه څوک نه رانږدې کوم چې الله تعالی لرې کړی وي .

امام احمد او مسلم رحمهما الله له نبي کریم علیه الصلاة والسلام نه روایت نقل کوي فرمایي:رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم دبدرد غزاله پاره روان شو،دمشرکانو څخه یوکس ورپسې ووت ، حره نومې ځای کې ورسره یوځای شو، ورته یې وویل غواړم له تاسره ولاړ شم او ثواب وګټم ."قَالَ تُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِه قَالَ لا، قَالَ: ارجِع فَلَنْ اَسْتَعِیْنَ بِمُشْرِكٍ ". (أخرجه الترمذي، کتاب السیر، باب ماجاء في أهل الذمة یغزون مع المسلمین.)، یعني رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم ورته وویل: په الله او رسول الله ایمان لرې؟ هغه وویل : نه ! پیغمبر علیه السلام ورته وویل: بیرته وګرځه زه هیڅکله له مشرک څه مرسته اوکومک نه غواړم.له همدې نصوصوڅخه څرګندیږي چې کافرانوته د مسلمانانو دچارو واګې سپارل حرام دي ځکه له دې لارې دوی دمسلمانانوله رازونو خبریږي او په اړه یې تصمیم نیسي چې اینده کې ورته تکلیف ورسوي .

موږپه سترګو وینوچې موجوده حکومت کې امنیت نشته ،اهل عدل خوهغه حکومت وي چې شریعت غواړي نه دیموکراسي.ټولوافغانانوته معلومه ده چې اوسنی نظام دیموکراسي پلې کوونکی نظام دی،اوداهم ټولوته ښکاره ده چې داحکومت څومره واکمن دی؟آیادهرولایت له مرکزنه ماسواپه اطرافوتسلط لري؟هیڅکله نه،بلکه حکومت یې یواځې په ښارونوواک لري،نه په کلیواواطرافو، د اسلام د قوانینو په رڼا کې یې د عدالت څرک هم نه دی راوړی اونه یې داسلام دقوانینوپه رڼاکې دشریعت یوحکم جاري کړی دی. دې حکومت کې غلا،غصب ،زنا،رشوت اودرغلي عادت جوړشوی دی،چې دوی په خپله په دغونارواووباندې اعتراف کوي.

ځینې خلک وایي چې طالبان بایدله دوی سره سوله وکړي .داخبره ټولوافغانانوبلکه دنړۍ ګردووګړوته په یقین معلومه ده چې اوسني حکومت سره سوله دتسلیمي په معنی دی. څرنګه چې د جهادي بیرغ د لوړوالي ترڅنګ، له دښمنانو سره سوله کول هم روادي، مګر په هغه صورت کې هیڅکله د سولې جواز نشته چې مسلمانانو ته پکې مصلحت او فایده نه وي ، بلکه مسلمانانو ته ضرر او تاوان وي ، او یواځې دښمنان د سولې له مصالحو څخه برخمن وي یعني سوله دتسلیمي په معني وي ، دنړۍ په تاریخ کې له پخوا څخه نیولې تراوسه دمتجاوزینو

یهـودو اونصـاراوو اودهغـوی دملاتـړ کوونکـو ظلمونـه پـه ټولـو اسـلامي هیوداونو له هیڅیا ځخه هم پټ نه دي ، د اسـلام لـه پیـل ځخـه نیـولې تـر اوسـه پورې، په جزیرة العرب او ځانګړې ډول په مدینة المنوره کې دمشرکانو دوامداره دوکې ، په منځی اسیاء ، هند او پـارس په هیوداونو کې د بت پرستانو خیانتونه او مکرونه ، او دنړۍ په ټولو هیوادونـو کې عیسویانو خیانتونـه پـه هـر وخـت کې سرته رسولي. د دې لپـــاره چـــې مســـلمانان خپـــل دښـــمنان ووپـــروي وربانديې لازمه ده ،چې د دوي په خـلاف اسباب ،وسائل او قوتونـه تیـار کـړي ، دوی سره د اســــلامي هیوادونــــو او مسلمانان ددوی ظلمونـو تـه د وړانـد ې کولـو او د خپـل ځـان او اینـده نسـل د دوی له غلامۍ ځخه د ژغورلو په خاطر ورسره د سولې تړون ونه کړي .

معلومـه خبره ده چـې لـه اشـغال شویواسلامي هیوادوځخه دکفاروایستل لــه صبراواســتقامت ، وینــو بهیــدلو ، کورنو او ښارونو او فصـلونو لـه منځـه تللو پرته ممکن نه دي ، مګر ښه پای به د متقیانو او صبر کوونکو په برخه وي ، چې له یوې خوا د حق پلویـان دي او لـه بلې خـوا یـې هیـواد اشـغال شـوی . پـه وروستیو پیړیو کې وینو چـې پـه نـړۍ کې هیڅ داسـې اسـلامي هیـواد نـه دی پاتې چې د اروپـایي هیوادنـو لخـوا نـه وي اشغال شوی ، مګر د هغو هیوادونـو د باتورو ولسونو لخوا وتلو ته اړشوي. دا برطانیه وه چې په اړه ویل کېدل په مستعمره کې یـې لمر نه ډوبیږي اوس د سمسېږې په څیر ده په چې پخپله سوړه کې ننوتې وي، همدا ډول فرانسه ، المان ، پرتګال او هالینډ نن مونږ ژوندي مثالونه ولیدل چې مغـروره امریکـا پـه ویتنـام کـې لـه شکست او ماتې سره مخ شوه ، په افغانستان کې دشـوروي اتحـاد لویـه امپراطـوري دړې وړې شـوه ، او ددوی تـر اسـتعمار لانـدې هیوادونـو ورنـه ازادي ترلاسـه کـړه ،البتـه ځینـي جهـادي مشرانوچې اسلام اومجاهد ملت سره کوم خیانت وکړهغه به په تاریخ کې پاتي وي.پـه ځـانګړې توګه اوسنی امریکا چې د طالبانو له یوې وړې ډلې سره په هر ځای کې لاس او ګریوان دی ، له شکست او ماتې سره مـخ ده.پـه تـاریخ کـې ډیـری داسـې پېښـې او عبرتونـه شـته چـې ډیـرو زبرځواکونو زمونږ خاورې اشغال کړې ، هلته یې فسادونه خپاره کړل ، مګر اخر یې هم شکسـت خوړلی او خړ مخ زمونږ له خاورو تېښتې ته اړ شوي .

دڅلورمې هجري پیړۍ نامتوحنفي مفسراومحدث امام ابوبکراحمدبن علـی رازي جصـاص پخپل تفسیراحکام القران کې اوابن عساکرپخپل تاریخ کې اونوروعالمانوویلي دي: دامام اعظـم ابوحنیفه په وړاندې داسلامي ټولنې دظالم حکومت په خلاف پاڅون اوجنګ کـول پـه دې موخـه اوهـوډچې دقـران اوسـنت نظـام قـایم کـړای شي ،لـه کـافرانوسره دهغـوی پـه هیوادونـوکې دجهادکولوپه پرتله په څوچنده فضـیلت اوغـوره والـی لـري. دمتجاوزاومحـارب کـافرسره صـلح حرامه ده،هرڅـوک چـې صـلح ورسره وکـړي پـه داسـې حـال کـې چـې خـارجي کفـارموجودوي اوقوانین ددوی چلیږي ،دهغه چاحکم دمتجاوزینوکفارودی اوجهادبـه ورسره کیـږي ـ دامقـدس جهاد به ترهغـه وختـه دوام لـري ترڅـوچې یوخـارجي متجاوزکافرپـه افغانسـتان کـې پـاتې وي اویوسوچه حکومت داهـل سـنت والجماعـت دحنفـی مـذهب مهـذب داصـولومطابق راځي.بلـه خبرداچې په اسلام کې داسې یوحکومت په هیچاباندې هم دحکومت کولوحق نلري ،چې درعیـت دسر،مال اوناموس حفاظت نه شي کولی.

دفتاوا بزازیه مصنف امام حافظ الدین چې په بزازي کردي سره شهرت لـري پخپـل کتـاب مناقب الامام اعظم ابوحنیفه کې لیکلي دي ،چې امام صاحب فتواورکړې وه چې دظالم حاکم پـه خلاف جنګ کول له اوپانفلي حج کولوځخه افضل اوغوره دی.(مناقب الامام اظـم ابوحنیفـه –ج ۲/ ۸۴مخ.) دظالمانوپه هکله الله تعالی په خپل مبارک کتاب قران کریم کـې دا فیصـله کـړې ده چې دظالمانو ملاتړ،له هغوی سره مینه درلودل ،دهغوی په ظالمانه کړو،وړوپـه خوښـی کولـوسره تمایل ناروادی.او دظالمانوسره مرسته ،کارکول اوملاتړ هم ظلم دی او د ظالمانو مرسـتندویان هـم دوزخیان دي.همدارنګه درسول الله صلی الله علیه وسلم لـه مبـارکو اقوالـو او احـادیثو ځخـه داخبره جوتیږي چې څوک پخپـل عمـل اویـاقول اویامـال اویابـل شي سره ظـالم پیـاوړی کـوي اودابښه ورته معلومه وي،چې ظالم دی؛ نوداسې شخص له اسلام ځخه خارج دی.اوچا چـې دظـالم مرسته دهغه په ظلم کې ورسره وکړه،داسـې شـخص یااشـخاص زمـا امتیـان نـه دي اوهـم بـه

دوزخ ته له گردو څخه لومړی هغه څوک ننوځي، چې له ظالمانوسره مرسته کوي اودهغوپه امر او هدایت خلک وهي.

په بل حدیث شریف کې فرمایي چې دظالمانو اوفاسقو حاکمانو مرستندویان اوله هغوی سره کار کوونکي به دقیامت په ورځ له حوض کوثرڅخه محروم اوبې برخې کړای شي.

امام ابوحنیفه رحمه الله فرمایي :دظالم واکمن اطاعت په مسلمانانوباندې لازم نه دی؛بلکه مخالفت ورڅخه ضروري دی.اودظالم حکومت په خلاف پرمسلمانانوباندې جهادکول فرض عین دی.

دفقهې له معتمدوکتابونو څخه معلومیږي چې اسلامي حکومت هغه دی ،چې دداسې اهل الرأی په مشوره قایم کړای شي ،چې په قران اوسنت پوه ،متقي اوعادل اومتشرع وي.له همدې کبله دداسې هیڅ یوحکومت متابعت اواطاعت پرمسلمانانوفرض اولازم نه دی،چې لومړی په زورونیولی شي اوبیاوروسته له خلکوڅخه دسیاسي خج په وسیله بیعت واخیستلی شي ،لکه دافغانستان اوسنی حکومت.

ځینې خلک وایي چې : طالبانو تر پایه پورې په زور د تسلط پراخولو ته دوام ورکړ، د زور او غلبې حکومت په اسلام کې مثالي حکومت نه دی،

حاکمیت باید د خلکو په مشوره رامنځ ته شي. له خلکو سره د مشورې اصل طالبانو خورا محدود گرځولی وو. تهول کار بې له زور نه اخیسته.

ځواب: اول خوداخبره ښکاره دروغ دی چې طالبانوپه زورتسلط راوستی ؤ،په زورتسلط خوداوسني حکومت دی چې دامریکایانوپه مټ رامنځته شو،طالبانوسره دهمدې خاورې بچیان ملگري ؤاودشروفسادپه ضدیې پاڅون وکړ،چې پایله یې شرعي نظام قایمول ؤ.بله خبره داده چې دخلکوسره دمشورې اصل طالبانومحدودنه ؤگرځولی ،بلکه ددې هیوادعمده اوزبده خلک چې عالمان دي له هرولایت څخه یې راټول کړي ؤاودهغوی په خوښه یې اسلامي امارت قایم کړی ؤ،که بالفرض دمشورې اصل یې محدودگرځولی ؤ،نوداکله ضروردی چې مشوره دې دهیوادله ټولووگړوسره وشي؟ صاحب د نبراس لیکي:اعلم ان بعض الناس یزعم ان خلافة علي کرم الله وجهه لم تثبت بالاجماع لان بعض الصحابة خالفوه وحاربوه واجیب بوجوه احدها وهوالحق ان صحة الخلافة غیرمحتاجة الي الاجماع بل یکفي بیعة بعض اهل الحل والعقدحتي قیل کفي الواحدمنهم وقدبایع علیا الوف المهاجرین والانصار (نبراس ٥١١) یعنې صحت دخلافت اوامارت اجماع ته احتیاج نه لري بلکه د ځینو اهل حل وعقدبیعت کافي دي،تردې چې دیوکس بیعت هم کافي دی.د اهل حل وعقد شرطونه دادي:

١ــ په اسلامي عقیده باندې به وي ٢ــ ذکورة ٣ــ په دیني علم کې رسوخ ٤ــ تقوي اوتصلب في الدین٥ــ دملک په سیاسي حالاتوبه بصیرت تامه لري. (احسن الفتاوي ج٦ص١٤٣)

داهل حل وعقد داسې یوخاص مشخص تعدادمتعین نه دی بلکه په داسې تعدادسره به وي چه د دوي بیعت په سبب سره امیرته تمکن د قوت، قدرت، شوکت اونفاذ د امر حاصلیږي.

## د ذمیانو ځنځیر:

د امیرالمؤمنین حضرت عمر بن الخطاب رضی الله عنه له زماني نه د ذمیانو(د اسلامي دولت نامسلمان اوسېدونکي) لپاره د مِسّو او اوسپني نه جوړ شوی ځنځیر په غاړو کي اچول یوه امتیازي نښه وه، د دغه ځنځیر پرته دوی حتی حمامونو ته هم نشوای داخلېدلای، دا د مسلمان او غیر مسلمان تر منځ یو واضح فرق هم وو. ځکه مسلمانانو به له خرافاتي او بې ځایه ځان جوړوني او زینت نه ډډه کوله، دوی کله هم ځانونه د نامسلمانانو په څېر نه جوړول . خو په فاسدو ټولنو کي راستر شوي گمراه ځوانان تل خپل ځانونه په داسي سپکو حرکاتو سره ښه ځرگندوي، دوی د یهودانو او نصاراوو او یا د غوا د عبادت کوونکو هندوانو نه په تأثر سره داسي کړنو ته د فېشن عنوان ورکوي.




# ولسمشره!

## يو مډال ماته هم راکړه!

بدرالدين ابدال

د کرزي د واکمنۍ وروستۍ ورځې وې. د ارګ ملا امام کرزي ته وویل: ماته د جنرالۍ رتبه راکړه. کرزي ورته ترخه مُسکا وکړه او ترې روان شو. د ارګ ملا امام ملامت نه و، چې له کرزي یې د جنرالۍ غوښتنه کوله؛ ځکه افغانستان ته هسې هم د جنرالانو کور ویل کېږي او له امریکا ډېر جنرالان په افغانستان کې دي. په تېرو اوولس کلونو کې دلته ماشومانو ته هم د جنرالۍ رتبې ورکړل شوې او د افغانانو قاتلین تر مارشالۍ پورې هم ورسېدل.

د جنرال عبدالرشید دوه ماشوم زامنو ته هم د جنرالۍ رتبې ورکړل شوې. د شمال ټلوالې واړه او زاړه له مخې جنرالان دي او ځینې ماشومان یې حتا د ملي امنیت شورا په مهم ځای کې لوړ پوړي مشاورین دي. د جنرالۍ رتبه په افغانستان کې ښه پر مخ روانه ده او کېدای شي څو کاله وروسته دلته د چارواکو ټول زامن یا جنرالان او یا هم مارشالان وي.

یو ملګری مې درې کاله مخکې ملي اردو ته تللی. اوس د بلوک قومندان شوی دی. یوه ورځ مې ورسره ټوکې کولې. مال کله جنرال کېږې؟ هغه راته ښه په زوره ـ زوره وخندل. ویل یې اول خو څو میاشتې وروسته او که‌نه یو کال وروسته حتماً جنرال کېږم. ما یې هم خبره ومنله؛ ځکه تره یې په اردو کې غټ چارواکی دی او دی نالوستی به هم څو کاله وروسته جنرال وي.

د نړۍ ځینې هېوادونه ملي شخصیتونه نه لري او له ډېرو وړو اشخاصو یې هم ملي او نړیوال شخصیتونه جوړ کړي دي. زموږ تاریخ د ملي شخصیتونو له ښو کارنامو ډک دی. احمد شاه بابا رحمه الله، میرویس نیکه، غازي وزیر محمد اکبر خان، ملا مشک عالم، سلطان محمود غزنوي، ملالۍ، نازو انا او لسګونه نور. د افغانستان حکومت اتلس ډوله مډالونه لري، چې ډېری یې د پورته اشخاصو په نامه جوړ شوي؛ خو له بده‌مرغه دغه ټول مډالونه اوس د زموږ د وژونکو او زموږ د وژونکو د پروژې تمویل کوونکو ته ورکول کېږي.

د کرزي او اشرف غني په اوولس کلنه واکمنۍ کې دغه مډالونه ډېری امریکايي، ناټو، اروپايي او ځینې اسیايي هېوادونو هغو مشرانو ته ورکړل شوې، چې دلته یې جګړه روانه ساتلې او زموږ د وژلو له‌پاره یې خپل عسکر رالېږلي دي.

احمد شاه بابا د هند فاتح، میرویس نیکه د ګرګین قاتل او د افغانستان د ازادۍ اتل، وزیر محمد اکبرخان د مکناټن قاتل، سلطان محمود غزنوي د هند فاتح، ملالۍ د میوند د جګړې اتله او نازو انا د میرویس نیکه مور. دغو اشخاصو نه یوازې افغانستان له پردیو زورواکانو ساتلی و، بلکې د هندوستان پر لویه خاوره یې کلونه ـ کلونه واکمني کړې وه. خو اوس د دوی په نامه جوړي مډالونه هغه چاته ورکول کېږي، چې دلته یې خپل لاسپوڅي کېنولي او هغه خلکو ته ډېر مډالونه ورکول کېږي، چې دغه پلیټ عسکرو پر وړاندې یې جګړه کړې وي او دوی یې شهیدان کړي وي. اشخاص بدلېږي او رابدلېږي؛ خو اشخاص باید د تاریخ له زوروې پربکړې ځانونه وساتي؛ ځکه تاریخ پر هېچا رحم نه کوي او راتلونکې نسلونه سپین ویل پرېږدي. ولسمشر چې د ناروې سفیر ته مډال ورکولی شي؛ نو زه هم یو مډال غواړم.



# له «اشغاله» تر «حضوره»!

ع + مرام

کله چې په ۲۰۰۱ کې امریکا د سپتمبر د یوولسمې د جعلي پېښو په پلمه افغانستان ته راغله؛ نو هغه وخت نه د افغانستان کوم قانوني حکومت هغوی ته بلنه ورکړې وه او نه افغان ولس؛ بلکې په خپل زور سره راغلل او زموږ هېواد یې اشغال کړ، هغه وخت چا له ډاره په مطبوعاتو کې د اشغال کله هم نه استعمالوله؛ خو وروسته په کرار کرار د امریکایي اشغال پر وړاندې کرکه مخ په زیاتېدو شوه او دا خبره له زړونو نه خولو ته را ووته. کله چې د بن غونډه جوړه شوه نو یو خو دا غونډه د امریکا او ناټو په وسیله د افغانستان تر اشغاله وروسته جوړه شوه، بله دا چې د امریکا تر اشراف لاندې جوړه شوه او دربیمه دا چې کومو کسانو په دغه غونډه کې ګډون وکړ، هغوی د افغان ولس استازي نه وو، که فرض کړو هغوی له امریکایانو سره څه وکړل هغه هم د «تو مرا ملا بګو من ترا حاجي» په مصداق وو. که د شمال جبهې له امریکایانو سره د هغوی په راوستلو کې مرسته وکړه، هغه هېڅکله په دې معنا نه و چې هغوی د افغان ولس نماینده ګان و بس له واکه یوه شړل شوې ډله وه چې د امریکا په واسطه یې بېرته ځان د اقتدار تر مانیو پورې ورساوه؛ خو د یوه مزدورانه اقتدار.

دا چې دا استقبال او کرکه به بالاخره کوم ځای ته وځي، هغې ته به هم وخت ځواب ووایي، باید په دې قضاوت کې ډېره بېړه و نه شي؛ خو زما بحث دلته په یوه ټکي دی او هغه دا دی چې څو ورځې د مخه مې په یوه تلویزیوني بحث کې له یوه محترم شخصیت نه واورېدل چې تر کومه امریکا په افغانستان کې پوځونه درلودل، هغه وخت افغانستان اشغال و؛ خو اوس چې امریکا خپل یو شمېر پوځونه وایستل او د وتلو خبرې کوي؛ نو اوس «اشغال» په «حضور» بدل شوی، په بل تعبیر تر هغه دمه چې امریکا خپل یو شمېر پوځونه له افغانستانه وایستل نو امریکا اشغالګره وه، چې په دې توګه ورسره وسلهواله مبارزه هم مشروع وه او اوس چې اشغال پای ته رسېدلی او خبره حضور ته رسېدلې؛ نو دې مبارزې هم خپل مشروعیت له لاسه ورکړی.

رېښتیا خبره دا ده چې زما په دغسې استدلال سر خلاص نه شو؛ ځکه چې اشغال خو ځانته یو تعریف لري، که خبره د حضور وي؛ نو امریکا هغه مهال هم په افغانستان کې حضور درلود او اوس هم حضور لري؛ خو دا حضور هغه مهال هم د اشغال لهپاره و او اوس هم د اشغال لهپاره دی. امریکا او ناټو دواړه له افغانستان سره هم ستراتېژیک تړونونه لري او هم امنیتي؛ خو حقیقت دا دی چې دا دواړه تړونونه د تحمیل له مخې و. امریکا، افغانستان له ژوبلې ګوتې نه نیولی و، پر افغانستان یې یو داسې حالت راوستی و چې د امریکا هر څه به یې منل؛ ځکه واك ته یې هم داسې کسان ورسول چې هغوی بله لار نه درلوده پرته له دې چې د امریکا هرې خبرې ته سر وښوروي؛ د شاه شجاع، د کمونستي دورې د واکمنانو او اوسنۍ اداري د واکمنانو ترمنځ څه توپیر موجود دی، د هغوی پر خولو خو همدا یو شعار دی چې: «ګل ګفتی و دُر سُفتی» شاه شجاع انګرېز ته سر ښوراوه د کمونستي دورې واکمنانو روسانو ته او د اوسنۍ دورې، امریکا او ناټو ته نور څه توپیر دی.

زه خو وایم پرته له هغو خلکوچې د خپلو سیاسي ضرورتونو او مجبوریتونو له مخې اشغال ته د «حضور» نوم ورکوي، نور به یې هېڅوك هم ورسره و نه مني. همدا اوس له امریکایانو پرته ان چې زموږ حکومت نه پوهېږي چې په افغانستان کې څومره امریکایي عسکر موجود دي، ان چې د ټرمپ د جمهوري ریاست په وخت کې خو هغه ده د هغو تللیو امریکایي عسکرو یوه برخه بېرته افغانستان ته راغله او ښایي نور هم راشي او دغسې حالت په مجموع کې د ناټو هم دی، حقیقت دا دی چې تر هغې پورې چې د امریکا وروستی عسکر هم په افغانستان کې وي موږ یې په حضور نه شو تعبیرولای، ولې په حقایقو سترګې پټوو؟

البته هغه کسان چې له پیله له امریکایي بهیر سره ملګري شوي، هغه بیا بل ډول استدلال کوي او هغه دا چې وایي د ملګرو ملتونو د امنیت شورا امریکا او ناټو ته اجازه ورکړې چې افغانستان ته راشي؛ نو پر دې اساس افغانستان ته د دوی راتګ قانوني دی او هېڅ مشکل نه لري او پر خلاف یې مبارزه ترهګري ده، هغوی د اوسنیو مخالفو وسله والو ته هم پر همدې اساس ترهګر وایي چې د ملګرو ملتو د پرېکړې مخالفت کوي او د دې حضور پر خلاف مقاومت کوي، هغوی له پیله افغانستان ته د امریکا او ناټو راتګ په اشغال نه دی تعبیر کړی او اوس هم ورته اشغال نه وایي او که امریکا خپل ټول تللي پوځونه بېرته راولي هم په اشغال یې نه تعبیروي؛ خو هغه چا چې تر پرونه د امریکا حضور ته اشغال وایه؛ نو اوس باید داسې کمزوری استدلال و نه کړي چې اشغال ته د حضور نوم ورکړي. دا چې دوی هم خپل مجبوریتونه لري، هغه جلا خبره ده؛ خو نور دې ولس ته د ړانده ګومان نه کوي، دغسې خلک دې په دغسې پیکه استدلال خپل دریځ په ټولنه کې نه لړزانده کوي؛ ځکه څوك یې ورسره نه مني، اشغال اشغال دی که د مشروعیت هر ډول جامې ور واغوندې بیا هم اشغال دی.

البته دا هم سړی په دقیقه توګه نه شي ویلای چې د امریکا تر وتلو وروسته به په افغانستان کې څه حالات راځي؛ ځکه دلته سیمه ییز رقابتونه یومخ له پامه نه شو غورځولای، خو پر دې سربېره دي؛ هیڅکله دا نه شومنلای چې دا اوس افغانستان اشغال نه دی دا ځکه وایو چې افغانستان د امریکا او ناټو له خوا اشغال دی چې هغوی په افغانستان کې پراخ نظامي حضور لري اوپه افغان ولس هرډول وحشت اوبربریت سرته رسوي ، دکابل اداره یوه وړه اداري ټاکنه اوهڅه هم دامریکایانوله خوښې پرته نه شي کولای .

## اسلام کمزور شوی نه دی بلکې موږ ګونډې وهلي دي

په صلیبي جګړو کې چې به کله د مسلمانانو سره په جګړه کې صلیبي فوځیان ټپي کېدل نو هڅه به ئې کوله چې د مسلمانانو فوځي کمپونو ته ځانونه ورسوي، ځکه دوی پوهېدل چې مسلمانان بندیان او ټپیان نه وژني، هغوی مهربان دي او د ټپیانو علاج کوي. دوی له دې نه هم خبر ول چې مسلمان طبیبان(ډاکټران) تر صلیبي ډاکټرانو ډېر ماهر دي ځکه هغوی عملیات هم کوي، کاټ شوي اعضاء بیرته پیوند کولای هم شي، چې ډېر وخت ئې مریضان بیرته پخواني حالت ته ورګرځي. داسې ډیري پیښې د تاریخ په کتابونو کې ثبت دي چې صلیبي فوځیان د مسلمانانو خوا ته ورغلي او ایمان ئې راوړی، د هغوی د اسلامي او اصولي ژوند نه ډېر متأثر شوي.

اسلام همهغه اسلام دئ، اسلام کمزور شوی نه دئ بلکي موږ ګونډې وهلي دي، حوصلې مو بایللې دي ... هدانا الله.

# امريكا ۱۷ كاله مخكې

## د بشر د حقوقو له شورا وتلې ده

م مبصر

که حقيقت ته نظر وکړل شي، امريکا هر وخت د بشر حقوق تر پښو لاندې کړي دي. هغه وخت چې لا د بشر- د حقوقو شورا جوړه هم نه وه، امريکا پـر هيروشيما او ناګاساکي اتومي بمونـه وغورځـول او د بشر- حقـوق څـه چـې بشر-يت يـې پـه اور کـې وسوځاوه.

د ملګرو ملتونو د بشر د حقوقو په شورا کې چې امريکا د غړيتوب کومه دعوه کوله هغه تش په نامه دعوه وه. تر ناګاساکي او هيروشيما وروسته يـې پـه نـړۍ کـې پـه ميليونونـو انسانان د جګړو په اورکې وسوځول؛ لـه ۱۷ کلونـو راهيسې يې افغانسـتان، عراق او سوريه د اوسېدونکو لپاره دوزخ ګرځولې ده.

تېره ورځ په ملګرو ملتونو کې د امريکا سفيرې، نيکي هيلي، د ملګرو ملتونو د بشر د حقوقو لـه شـورا څخـه د وتلـو پرېکـړه پـه داسې حال کې د واشنګټن په يوه خبري کنفرانس کې اعـلان کـړه چې د امريکا د بهرنيو چارو نوی وزيـر، مايـک پمپيـو، يـې هـم تـر څنګ ولاړ و.

نيکي هيلي ويل چې امريکا د ايران د اټومي مسئلې پـر سر د ملګرو ملتونو د بشر د حقوقو له شورا ووتله.

نيکې هيلې وويل امريکا ځکه له دې شورا ووتله چې ايـران له حکومت سره د مخالفت له امله سلګونه وګـړي نيـولي دي او، د هيلې په خبره، وژلي يې دي، خو د ملګرو ملتونـو د بشر- د حقوقو شورا پرې هيڅ غوږ نه دی ګرولی.

د امريکا لپاره د نيکي هيلي خبره پـر ځـای ده. نيکـي هيلـې هغه څه وايي کوم چې امريکا ته ګټه رسوي.

که د هيلي خبره ټينګه کړو، بايد د ملګـرو ملتونـو د بشر- د حقوقو له شورا ټول غړي ووځي ځکـه امريکـا چـې پـه نـړۍ، او پـه ځانګړې توګه په اسلامي هېوادونـو کـې، کـوم اور بـل کـړی دی او هره ورځ د امريکا لخـوا پـه پيـل کـړل شـويو جګړو کې انسانان وژل کېږي د بشر د حقوقو اداري پرې يوه ورځ هم غوږ نه دی ګرځـولی. بايد د نيکي هيلې خبره عمـلي كـړل شي او د بشر- د حقوقو لـه شـورا ټـول غـړي هېوادونـه ووځي.

امريکايي چارواکي پـه دې عقيـده دي چې د بشر د حقوقو شورا له اسراييلو سره سم چلنـد نـه کـوي. د بشر- د حقوقـو شـورا چـې پـه فلسـطين کـې د اسرييلو پر وحشت او ظلمونو کومې سترګې پټې کـړې دي د يـوه هېواد پر وحشت يـې هـم نـه دې پټې کـړې. او داسي هـم نـه شي کېدای چې اسراييل دې هره ورځ په غزه کې مسلمانان په اور کې سوځوي او د بشر د حقوقو شورا دې چوپه خوله ناسته وي.

د ملګرو ملتونو د سرمنشي، انتونيـو ګـوتيريش، ويانـد د دې پرېکړې په غبرګون کې ويلي: امريکا بايد د بشر حقونو پـه شـورا کې پاتې شي.

دا د ګوتيريش خپل نظر دی، خو د بشر- د حقوقو پـه شـورا کې د امريکا پاتې کېدل ګټه نه لري، ځکه چې امريکا تل بشر پـه اور کې سوځولی دی، حقوقو ته يې نه دی پريښي. د امريکـا لپـاره د ګوتيريش غوښـتنه ګټـه نـه لـري او نـه امريکـا د بشر- د حقوقو درناوی کوي.

امريکا په افغانستان کې د بشر د حقوقو نوم هم د افغانانو له ياده وويست. دومره وحشت او ظلمونه يې وکـړل چـې پـه ځنګـل کې به يې يو وحشي له بل وحشي سره هم ونه کړي.

په افغانستان او نړۍ کې د امريکا وحشت او ظلمونو وښوده چې نوره امريکا د ملګرو ملتونـو د بشر- د حقوقـو پـه شـورا کـې د پاتې کېدو نه ده ځکه د ټرمپ اداري ترې د وتلو پرېکړه وکـړه. او ډېـر ښـه پريکـړه يـې وکـړه، د بشر- د حقوقـو پـه شـورا کـې هغـه هېوادونه پاتې کېږي چې په بشريت عقيده ولري، له وحشيانو بايد د بشر حقوق ونه غوښتل شي.

د ټرمپ اداري اوس د نيکي هيلي په خوله اعـلان وکـړ، پـه حقيقت کې امريکا ۱۷ کلونـه پخـوا لا چـې پـر افغانسـتان، او نـورو هېوادونو کې يـې پـوځي مـداخلې وکـړې، د بشر- حقـوق لـه منځـه يووړل او له دې شورا يې ځان وتلی حساب کړی دی»



# پس له واده.....؟!

ف. فیض

له امریکا او ناټو سره د افغان حکومت له خوا د امنیتي تړونونو لاسلیك د افغانستان په معاصر تاریخ کې د خجالت یوه نقطه ده. شاه شجاع له انګرېزانو سره د لاهور په تړون کې له یو شمېر افغاني ځمکو نه لکه کشمیر، دیره جات او نورو تېر شو او دوست محمد خان د جمرود په تړون کې د خپل هېواد د بهرني سیاست واګې د انګرېز په لاس کې ورکړې، د ګندمك تړون، د ډیورنډ تړون ان چې د امان ا... خان د ۱۹۲۱ د راولپنډۍ تړون ډېر خام ټکي لرل؛ خو دا لومړی ځل و چې د افغانستان واکمن په خپله خاوره کې بهرنۍ اډې مني، ان چې د ډاکتر نجیب د وخت په اساسي قانون کې دا درج دي چې افغانستان هېڅ بهرني ځواك ته اډې نه ورکوي سره له دې چې هغه د کا جي بي یو لاسپوڅی و؛ خو د ملي وحدت حکومت چې اوس د ولس په منځ کې په «ملي نفرت» بدل شوی، ځانته دا تاریخي پېغور پرېښود. زه نه پوهېږم چې د اوسني حکومت مشران به له تاریخه څه توقع لري چې د دوی په اړه به څه قضاوت کوي؟ دې حکومت خو ولس ته څه خاص د یادونې وړ کوم خدمت و نه کړای شو؛ خو له امریکا او ناټو سره یې داسې تړونونه لاسلیك کړل چې له مخې به یې دا دواړه تر نامعلوم مستقبل پورې په افغانستان کې پراته وي. هغوی ته دا خبره ډېره اسانه ده چې د افغانستان حالات داسې وغځوي چې افغانان دا مجال پیدا نه کړای شي چې د الغا لهپاره یې اقدام وکړي او تر اوسه یې افغان ولس ترخه څکي.

البته په دې ستر ملي خیانت کې یواځې د ع ـ غ حکومت مشران او شریکوال شریك نه دي؛ بلکې هغه جهادي اودرباري رهبران هم شریك دي چې د دې تړون پر لاسلیك یې ټینګار کاوه اوالعیاذبالله شرعي توجیهات یې ورته کول دجان کیری په لاس جوړرژیم له حکومته زیاته جفا په اصطلاح ملي شورا وکړه او دغه تړونونه یې په پټو سترګو تأیید کړل. په دوی کې به داسې کسان هم ضرور وو چې دومره سیاسي پوهه یې نه درلوده چې د دې کار عواقبو ته متوجه شي؛ خو د دې امکان هم ډېر و چې ډېری به تطمیع شوي وي او یا به یې د امریکا د سفارت څه نغدې مرستې هم ترلاسه کړې وي.

. زه خو وایم تر هغې چې د امریکا دا ډالر وي، ښایي ډېر لږ کسان وي چې په دغسې مواردو کې د ایمان پرېکړې ته پناه یوسي او د خپل هېواد پر خلاف، د خپلو ملي ګټو، ځمکنۍ بشپړتیا، ملي حاکمیت او سیاسي استقلال پر خلاف داسې ګام پورته نه کړي چې سبا ته یې تاریخ محکوم کړي، پښتو متل دی چې نه به تل دا ناصر خان وي، نه به تل دا سره اوښان وي. نه به همېشه (ع او غ) د اقتدار په مانیو کې ناست وي او نه به زموږ د ملي شورا دا اوسني غړي او نه به یې دا اوسنی غُر و فش وي او هغه د ملي شاعر پیر محمد کاروان خبره چې:

وخت به راځي چې غابن د زهر به ښامار نه لري

منصور به ګرځي مستانه، ملا به دار نه لري

بیا به نه دوی څوك ګواښلی شي او نه به د تاریخ د قضاوت مخه نیولای شي.

دا وړمه ورځ (۹۷/۲/۳۰) د مشرانو جرګې په ادرس داسې خبرونه خپاره شول چې که امریکا په روانو ناامنیو کې زموږ مرسته نه کوي؛ نو موږ به پر امنیتي تړون له سره غور وکړو

اوس یو خو دا خبره کومه نوې خبره نه ده؛ بلکې وخت پر وخت هم د مشرانو جرګې او هم د کشرانو جرګې (ولسي جرګې) لهخوا دغسې ګواښونه شوي او ما پخپله په وار وار د تصویري او غږیزو رسنیو له لارې اورېدلي او په چاپي رسنیو کې مې لوستي دي؛ خو دغسې ګواښونه د همغې یوې ورځې یا یوې شېبې ګواښ وي، بیا دا کتاب بېرته وتړل شي. زه خوا وایم دا به ډېره د افسوس خبره وي او چې لا ده، چې داسې کسان په ملي شورا کې ناست دي چې د سیاست په الف با نه پوهېږي او د خپل هېواد د راتلونکي لهپاره یو مثبت فکر نهشي کولای. که چېرې ملي شورا ریښتیا وایي؛ نو دا خبره ولې هره ورځ تکراروي خو په عمل کې یو ګام نهشي اخستلای. زه خو وایم که ملي شورا دا جرأت وکړي په تاریخ کې به یې یو ستر نوم ګټلی وي .



یوه مطرح کس را ته څو کاله د مخه نکل کاوه چې په یوه ګډه ناسته کې مې چې له امریکایي جنرالانو سره مو درلوده، یوه امریکایي جنرال ته وویل چې دا افغان ولس ډېر غریب، بېوسه او بېوزله ولس دی؛ خو تاسې چې څه کوئ دا تصور و نه کړئ چې افغانان پرې نه پوهېږي. وایي چې د هغه جنرال مخ تک سور شو او سر یې کښته واچاوه او ویې ویل چې دا خبرې زموږ له سویې نه لوړې دي، کولای شئ له مشرانو سره یې مطرح کړئ؛ نو اوس که په کورنۍ کچه هم زموږ هره مرجع هر څه کوي، افغان ولس یې ګوري او دا شپې ورځې او شېبې به هم تېرې شي؛ خو سبا ته به یې تاریخ د خپلو اعمالو هنداره په لاس کې ورکوي، چې واخله او خپله څېره دې په کې وګوره. تاریخ په خپل قضاوت کې بیا له هیچا نه، نه وېرېږي. لنډه وګورئ نن تاریخ همدا د پرون او آبل پرون د مشرانو په باب څه وایي.

زه دلته خپله هغه خبره چې تقریباً شپاړس اوولس کاله د مخه مې لیکلې بیا لیکم چې:

»ماما د ډېرو شپو مېلمه دی«

امریکا او ناټو افغانستان ته د څو ورځو لهپاره نه دي راغلي، هغوی په سیمه کې اوږدمهال ستراتېژیک اهداف لري او په دې اړه یې لا پخوا دقیقه ارزونه کړې چې باید له افغانستانه د خپل نظامي مورچل په حیث کار واخلي. زه پر خپلو ټولو مسؤولو کسانو او مقاماتو غږ کوم چې د «پیسو» پر ځای د «کیسو» د ګټلو هڅه وکړي، د دنیا ژوند ډېر لږ دی او ډېر ژر تېرېدونکی دی، موږ د خپل خالق حضور ته ور روان یو، د یوه مسلمان ولس د افرادو په حیث باید تر ټولو د مخه راسره دا اندېښنه مله وي چې سبا ته به د قیامت په هغه لویه ورځ خپل رب ته د خپلو نننیو اعمالو، اجراآتو او سیاستونو په اړه څه وایو او بیا په دوهم ګام کې باید د تاریخ قضاوت هېر نه کړو. سپهسالار صالح محمد خان د استقلال د غزا پر مهال یوه بې ایماني وکړه له جنګه را وتښتېد چې تاریخ یې هره شېبه دا بې ایماني مخې مخې ته کوي او دغسې د تاریخ بې ایمانه عناصر یو هم نه بښي؛ نو باید هر څوک دا دواړه انجامه په پام کې ولري.



د اشغال د تداوم په مقصد د پیل شوې دسیسې په اړه

# د اسلامي امارت اعلامیه

په تېرو اوولسو کلونو کې امریکایانو او د هغوی داخلي لاسپوڅو خپل ټول کوښښونه وکړل تر څو په افغانستان کې د بهرني ظالمانه تجاوز په مقابل کې د اولسي جهاد غږ خاموش کړي. توطیه گر دښمنان چې کله په نظامي ډگر کې نامراده شول نو یې د اشغال د تدوام په مقصد سرو حربو ته لاس واچاوه، لومړی یې د سولې په نوم کمیسیون جوړ کړ، وروسته یې همدغه کمیسیون د سولې په شورى بدل کړ چې امریکایانو ورته سلگونه میلیونه ډالر بودیجه مقرره کړه.

خو د څو کلونو په تیریدو او د سلگونو میلیونو ډالرو له مصرف سره سره بیا هم دغه د امریکایي دسیسو اجراء کوونکي ونه توانیدل چې بادرکه افغان اولس له خپل دیني او ملي جهادي عزم څخه منحرف او د ظالمانه امریکایي اشغال په اړه یې نظر بدل کړي.

په دې وروستیو کې د سولې تر عنوان لاندې هماغې پخوانۍ امریکایي دسیسې بل شکل اختیار کړی دی. دا ځل د هماغو امریکایي ډالرو په مصرفولو سره هڅه کیږي چې ظاهرا د بې طرفه خلکو په عنوان د پرلت په نامه د اشغال د تدوام کمپاین ترسره کړي او یا هم استخباراتي کارکونکو ته د قومی مشرانو نومونه ورکول کیږي او د هغوی په توسط هڅه کیږي چې مقدس جهاد د افغان وژنې په حیث معرفي کړي او په پایله کې د امریکایانو کفري اشغال ته په دې اسلامي او خپلواک هیواد کې پایښت ورکړي.

د افغانستان اسلامي امارت د اسلام د مقدس دین له هدایاتو سره سم، او د خپل اولس ویاړمن تاریخ او ملي تشخص ته په ژمنتیا سره هر هغه حرکت د اولس او هیواد په زیان بولي چې د امریکایانو اشغال ته د دوام زمینه برابروي او د اشغالگرو کفارو په مقابل کې د الله تعالی له لوري فرض کړل شوي مقدس جهاد ته بین الافغاني جنگ یا ورور وژنه وایي.

موږ له ټولو هیوادوالو، ځوانانو، اجتماعي قشرونو او سیاسي ټولنیزو اړخونو غوښتنه کوو، چې د اشغالگرو له پټو او ښکاره استخباراتي دسیسو څخه دې ځان لرې وساتي. د سولې تر نوم لاندې د دې مرموزو جریانونو او پرلتونو یوازینی هدف دادی چې زموږ په اسلام او خپلواکۍ مین اولس د جهاد له برحقې داعیې

ځخه منصرف کړي. دوی د همدې هدف لپاره پرته له دې چې د جنګ په عواملو وغځېدو يوازې د سولې شعار بدرګه کوي. د اشغال په خلاف هيڅ هم نه وايي او نه د بهرنيانو د وتلو موضوع مطرح کوي. د دوی هدف دا دی چې مجاهد اولس وسله پر ځمکه کيږدي. د اشغالګرو تپل شوی رژيم ومني تر څو اشغالګرو ته په پُرامنه توګه د خپلو پوځي، فکري او ستراتيژيکو اهدافو د ترلاسه کولو زمينه برابره شي.

د افغانستان روانه جګړه بين الافغاني جګړه نه ده، بلکې د امريکايي متجاوزينو او افغان مجاهد اولس تر منځ جګړه ده. دا چې ځينو ناخلفه داخلي ګوډاګيانو په دې مقابله کې د اشغالګرو اړخ نيولی په هيڅ صورت د جګړې ماهيت نه شي بدلولای. موږ پوهيږو چې د امريکا ګوډاګيان د زوال د کندې په غاړه ولاړ دي. د جګړې په ډګر کې يې شکست خوړلی، هره ورځ درانه تلفات ورکوي او سيمې يې له لاسه وځي، چې له همدې امله يې د وروستۍ هڅې په توګه د سولې تر شعار لاندې تيرايستونکي هڅې پيل کړي دي.

هيوادوال په دې هم خبر دي چې په تيرو اوولسو کلونو کې اشغالګرو هميشه د ښو او مثبتو شعارونو تر عنوان لاندې شيطاني دسيسې عملي کړې دي، اشغالګرو په افغانستان ظالمانه يرغل ته د ( ازادۍ) نوم ورکړ، د پنځاګون لخوا د مليشه سازۍ پروګرام يې په (ملي پاڅون) مسمی کړ، د اشغالګرو د اشغال تاييدوونکې غونډې ته يې د لويې جرګې عنوان غوره کړ او اوس غواړي چې د (پرلت او سولې) زړه وړونکی شعار هم د خپلو اشغالګرانه موخو لپاره وکاروي. خو هيوادوال بايد د عنوان په ځای محتوا ته پام وکړي او تش د سولې په شعار د هغه کمپاين برخه نه شي چې يوازينۍ موخه يې د امريکايي اشغال تداوم او د روان فاسد او ګوډاګي رژيم پايښت دی.

له دې اعلاميې او خبرتيا وروسته که لاهم څوک د دې ناوړه پروژو برخه ګرځي نوښکاره خبره ده چې د دښمن داستخباراتو پروژه به پرمخ وړي.

اسلامي امارت به د متعال رب تعالی په نصرت او د خپل بادرګه اولس په ملاتړ سره ان شاءالله د اشغالګرو او د هغوی د ګوډاګيانو دغه وروستۍ تزويري هڅه هم له ناکامي سره مخامخ کړي او هغه ورځ لرې نه ده چې د اشغال په پای ته رسيدو او بشپړې خپلواکۍ په ترلاسه کولو سره مو اولس د باعزته او واقعي سولې تر منزل پورې ورسيږي.

و ماذلک علی الله بعزيز

دافغانستان اسلامی امارت

۱۴۳۹/۱۰/۱۱هـ ق

۱۳۹۷/۴/۴هـ ش ــ 25/6/2018م



# له دېوال سره خبرې!

ليکوال: بريال سهار

يوه شپه مې د قرآن کريم تلاوت کاوه چې نا څاپه د کوټې د دېوال په پورتنۍ برخه کې دَرځ راغی. پر دېوال مې لاس کېښود او په حيرانتيا مې له ځانه وپوښتل چې کور خو مې نوی جوړ کړی، ولې په کې دا درځ را پيدا شو؟ زلزله خو به نه وي شوي؟

ناګهانه دېوال را باندې غږ کړ، ته خبر يې چې له څومره شپو او ورځو زه ستا د دغه «خلوت او ګوښه عبادت» سترګې په لار وم!؟ هغه وختونه دې ياد نه دي، چې په تدبر او سوچ سره به دې د قرآن کريم تلاوت او تفسير لوست ؟ ډېره موده کېږي چې له ما نه ورک شوی وې، نه پوهېږم چې دا ولې!؟

عبدالله چې دېوال ته يې کتل وويل، ما د خپل رب په حق کې ډېر کمی کړی دی.

دېوال: ته خبر نه يې؟ د قيامت په ورځ به ټول جمادات ستا له پاره شاهدي ورکوي، الله تعالی فرمايي ( وأخرجت الأرض أثقالها وقال الإنسان ما لها يومئذ تحدث أخبارها). ښه کارونه وکړه، څو د قيامت په ورځ ستا له پاره شاهدي ورکړم.

عبدالله: آيا مخکې هم د عبادت له پاره خلک ګوښه «خلوت» کېدل؟

دېوال: هو!. نبي کريم -صلی الله عليه وسلم- د وحې تر راتلو پورې د ورځې په غار حراء کې پاتې کېده او د شپې له خوا به يې الله ته په خلوت کې لمونځ کاوه.

-د رمضان په اخرېنۍ لسيزه کې به يې اعتکاف هم کاوه.

عبدالله : د خلوت يا د عبات له پاره د ځان ګوښه کول څه ګټې لري؟

دېوال: زه به درته په دې باره کې د سيد قطب -رحمه الله- وينا را نقل کړم، هغه وايي « هر هغه روح چې په عملي ډګر کې موثريت غواړي، بايد د يو څه وخت له پاره له خلکو ځان لرې او خلوت اختيار کړي، له دنياوي مصروفيتونو، د ژوند له غالمغال او د خلکو له اندېښنو ځان ګوښه کړي، بايد په دې لوی عالم او په نغښتو حقايقو کې د سوچ، فکر او تدبر کولو له پاره لګ څه وخت لري». دې سره به د ده روح پر يو الهامي قدرت پياوړی او په عملي ډګر کې له موثريت څخه برخمن شي.

عبدالله: تا وايي چې داعي خپل ځواک، قوت او موثريت له خلوت او د ګوښه عبادت څخه اخلي.

دېوال: هو! هغه د الله تعالی له نوره خپله توښه برابروي او هره ورځ په نوي بڼه را وځي.

عبد الله: د خلوت او ګوښه کېدو نورې څه ګټې دي؟

دېوال: د ژبې له آفتونو خوندي‌کېدل، له ريا څخه د زړه خلاصون، د عبادت د خوږوالي وجدان،



د سترګو حفاظت او په تدبر او فکر سره د عبادت کولو چانس موندل دي.

عبدالله: دا خو هغه څه دي چې زه یې په تلاش کې یم.

دېوال: سهي وایې، ته مې چې کله په تلاوت ولېدلې خوشحالي مې کابو نه شوه کړای او دغه درځ را کې راغی.

عبدالله: ښه. خو آیا د خلوت او ګوښه کېدو له پاره یواځې شپه شرط ده؟

دېوال: شپه غوره ده، خو د ورځې هم ځان ګوښه کولای شې، مثلا د ځاښت لمانځه وخت ځان ته وټاکه.

عبدالله: شپه ولې پر نورو وختونو غوره ده؟

دېوال: ځکه هغه مهال ارامي وي، خلک په سکون کې وي او په عبادت سره سړي ته ډېر خوشحالي نصیب کېږي. بشر الحافي -رحمه الله- وایي، « د خلکو غفلت او له دوی ګوښه نشیني د مؤمن له پاره غنیمت دی.»

له همدې کبله کوښښ وکړه چې کم تر کمه په میاشت کې یو ساعت د سوچ، فکر او عبادت له پاره له خلکو ځان ګوښه کړې. جلیل القدر صحابی یعلی بن امیة -رضي الله عنه- به روزانه یو ساعت په مسجد کې له خلکو د اعتکاف په نیت کښېناسته.

د امام احمد بن حنبل -رحمه الله- زوی وایي، چې پلار یې له هر چا څخه په ګوښه توب کې تکړه و، هغه به په مسجد، جنازه او یا د ناروغ پوښتنې پر مهال خلکو لیده او ده بازارونو له چکرو یې ډډه کوله.

دا مې درته د سلفو صالحو مشت نمونه خروار مثالونو ذکر کړل، د دوی پر پل خپل پل کېږده، کامیاب به شې.

عبدالله: سره له دې چې په دا ډول عبادت کې دومره ګټې دي، ولې زما په ګډون ډېر خلک ترې ځان څنګ ته کوي؟

دېوال: لامل یې له فضیلت څخه د ذات خالي والی دی. د نفسیاتو ډاکټر ابو حامد الغزالي -رحمه الله- ویلي « چې کله سړی له فضیلت څخه ځان لرې وساتي، بیا له خلکو سره ناسته پاسته کوي او ورته پرې سکون ملاویږي.»

عبدالله: رېښتیا وایې. خو د خلوت له پاره کوم برنامه باید غوره کړم؟

دېوال: د الله د عبادت له پاره د خلوت او ګوښه کېدو ډېرې برنامې شته؛ د مثال په ډول د قران کریم تلاوت او تفسیر لوستل، د احادیثو او یا نور ایماني او اخلاقي کتابونه لوستل، د الله تعالی ذکر کول، د کوم ښه عالم تقریر او یا مسلې اورېدل...

ابن تیمیه -رحمه الله- فرمایي، هر بنده باید په ځانته والي کې د الله څخه دعا وغواړي، ذکر، لمونځ او د الله په مخلوقاتو کې سوچ و فکر وکړي، د خپل ځان، زړه او د هغه شیانو چې یواځې ده پورې اړه لري محاسبه وکړي. د دغه کارونو تر سره کولو له پاره ده ته په کور یا له کوره بهر ګوښه ځای په کار دی.

عبد الله: الله تعالی دې خیر در کړي. کاش چې زموږ ټولونو دېوالونو ستا په څېر درزونه کړي وای، څو نوري خوږې او له پنده ډکې خبرې مو ترې اورېدلې وای.

دېوال: زه یوه اخري خبره هم درته کوم.

عبد الله: وایه!

دېوال: ګوره! لکه څنګه چې پر بدن امتحان راځي، همدا رنګه په زړه هم امتحان راځي. بدن پر ناروغیو او کړاونو مبتلا کېږي، خو زړه بیا په فتنو مبتلا کېږي، الله تعالی فرمایي (وْلَئِكَ الَّذِينَ امْتَحَنَ اللَّهُ قُلُوبَهُمْ لِلتَّقْوَى). ګرانه له زړه سره حکیمانه چلند کوه.

# د اُحُد مینه:



لیکوال: صفي الله "رائد"

دویمه برخه :

مینه او محبت د زړه ځانګړی کیفیت دی، چې په بصیرت سره د کمال له لیدلو ټوکیږي. انسان مینه کوي او کولی یې شي، ځکه؛ زړه لري، سترګې لري، او هر څه ویني. د محبت دنیوي او اخروي لاملونو ته په کتلو سره مؤمن له خپل رب او د هغه له رسول صلی الله علیه وسلم سره مینه لري. خو عجیبه ده!! انسان خو یې ویني، خبرې یې اوري، او په لارښوونو یې د عمل کولو له امله د برياوو تصور کولی شي؛ خو غر څنګه محبت کولی شي؟؟ ونه بیا محبت څه پېژني؟؟ او حیوانات بیا په محبت څه پوهیږي؟؟ هوکې! دا د مینې له لوړتیا زیږیږي، کله چې په یو چا کې د محبت وړتیا تر اندازې ډېره وي بیا یې مینه یواځې تر انسانانو محدوده نه پاتې کیږي، بلکې د حیواناتو او جماداتو د محبت کیسې یې هم اورېدل کیږي .

هو!! احد غر وو، تېره وه او مونږ یې د حس تصور هم نه کاوه، خو؛ له رسول الله سره یې مینه وه، هغه هم ورسره محبت کاوه، تر دې چې د محبت کیسه یې تر مونږ راورسېدله.

له هغه محبت به انسان څنګه انکار وکړي چې د ونې له ډېر څخه د جانان د بېلتون له امله د ماشوم په څېر د ژړا غږ اورېدل کیږي. هغه محبت به تاریخ څنګه هېر کړي، چې: د اوښ له لوري زما جانان صلی الله علیه وسلم ته سجده کیږي. او هغه که مینه نده نو څه به وي چې د تیږو له لوري ورته سلامونه کیږي.

اې!! عجیبه ده! چې احد ورسره مینه کوي زه یې ورسره ونکړم؟؟؟ چې ونه پسې ژاړي زه یې د وصال له شوقه ونه ژاړم؟؟ او تر ټولو مهمه دا چې: اوښ یې په پښو کې سر بږدي زه پرې سر نذرانه نکړم؟؟؟

کومه معمایي افسانه نده؛ د جانان مینه ده، چې غواړم د اصحابو په لار قدم کېږدم، او په مینه یې ځان نذرانه کړم. د یو چا د مینې تصور چې د احد د مینې په څېر له عقل پورته وي، په ګوډ او مات قلم به څنګه انځور شي؟ او څنګه به یې تعریف وشي؟!

هو!! که غواړې چې د جانان تر مینې ځان ورسوې؛ نو د احد په څېر استقامت، د اوښ د روایت په څېر عاجزي او سرښندنې ته اړتیا ده. کله چې د جانان د مینې لپاره یې په پښو کې سر ایښودل کیږي، مونږ هم دېته تیار یو چې د جانان د دفاع لپاره د خپلو ځانونو نذرانه وړاندې کړو.

## #غابښ_ماتوونکی_جواب!

یو کس د دیني مدرسې یو طالب ولید نو ورته یی وویل:
غربیان سپوږمی ته ورسیدل او ته ناست یې دیني کتابونه لولې، کوم چی هیڅ په کار نه رازي!
طالب وویل :
په دې کې نو د حیرانتیا څه خبره ده؟
هغوی مخلوق ته ورسیدل او مونږ خالق ته رسیدل غواړو!
خو !
ته په دې نه پوهیږې چی زمونږ او د غربیانو تر منځ تاسو یوازیني بې لارې، لوفر،لوچک او ... مخلوق یاستئ چی نه د هغوی سره سپوږمئ ته لاړئ او نه مو له پاک دین اسلام څخه ځان خبر کړ چی الله (جل جلاله) ته ورسیږئ!
افسوس د سیکولرانو او مذبذبه ملحدینو په حال

# د قاتل عزيزالله کاروان دظلمونو يوه بيلګه

■ منير



يو ورځ په لار روان د مدرسې طالب کتابونه په لاس کي عزيز الله کاروان ونيوی او امر يې وکړ چې په ټانګ پوري يې وتړئ او تر بازاره يې کش کړئ

مظلوم طالب العلم ورته په ژړغوني او مظلومانه آواز وويل : قومندان صيب زه خو د مدرسې طالب يم دا مي کتابونه دي اوس د کوره را ووتلم او د مدرسې په لور د سبق ويلو په تکل روان يم ليکن ظالم او وحشي عزيز الله کاروان خپلو حيوان صفته ګوډاګيانو ته په قهرجنه لهجه غږ کړ:

چې کش يې کړئ همدا طالب چې بيا فارغ شي جنګي قومندان به وي او زموږ د وژلو فتواګاني به ورکوي نو ښه داده چې اوس يې لا مخه ونيسو

مظلوم طالب د بې وسۍ چغي وهلې ليکن ياد ظالم قومندان او دده د وحشي درندګانو ورته پر زړه هيڅ رحم رانغلی آن دولسوالۍ تر بازاره يې کش کړ او په کش کولو کي يې په شهادت ورساوه

ياد مزدور او وحشي قومندان داسي لسګونه نور بې ګناه ملکي وګړي هم په شهادت رسولي وه

خو الحمدلله چې په نن پسي سبا سته او هر فرعون ته موسی رب پيدا کړی دادی نن مو ددې ظالم د مرګ خبر واوريد د شهيدانو انتقام منتقم ذات ترينه واخيست او ديکتيکا مظلوم ولس يې دده له شر څخه د تل لپاره خلاص کړ

نن به د ټولو هغو مظلومو شهيدانو روحونه په قبرونو کي خوشحال وي چي دغه وحشي درنده په شهادت رسولي وه نن به د ټولو هغو شهيدانو پر بورو مياندو او خوندو کونډو ، ميرمنو او ګلاليو يتيمانو ، غمځپلو ورونو او خويندو باندي بې اختره د اختر خوشحالي راغلې وي کوم چې دغه ګوډاګي د امريکايي بادار لپاره قرباني کړي دي.

دغه راز په مارزکو کي يې په يوه مدرسه چاپه و.وهله تنکي طالبان يې مرګوني و وهل کتابونه يې وسوځول. مشران طالبان يې ځان سره د ارګون بازار خواته را روان کړو.په لاره کي يې يو ځاى ټولو ته خالي ټوپکان مشينان ورکړل واى دا په ما ونيسئ.هغو به ورته وخندل چې دا څه قيصه ده.او څه ګټه څه تاوان.خالي ټوپکان دې دښته کي ولي راکوي.او موږ خو ټول د مدرسې طالبان يو.دۀ په زوره ټوپکان ورکړو چې دا واخلئ هلته کينئ.څو عکسونه درڅخه اخلم نور مو بيرته خوسي کوم.هغو چې کله مشينان واخيستل لږ وړاندي ولاړو دۀ عسکرو ته امر وکړ چې کشته کو.بزن .. اوه اته ځوانان يې په يوه ګړۍ شهيدان کړو.وروسته يې ټول په رينجره کي ږاچولو ارګون بازار ته يې راوړو په بازار او کوڅو کي يې وګرځولو يې دا پنجاپيان مي مخامخ جګړه کي وژلي دا يې اسلحې دي.بيا يې شهيدان له رينجرو را اچولو اخ دا سانحه مي په سترګو ليدلې.خو وس به کار نکولو او نه به شي راسره و. عسکرو به د طالبانو تنکي بدنونه په چاړو وهلو په سترګو کي يې چاړې وردننه کولې.غوږونه او پوزې به يې ورڅخه پرې کولې.

قومي مشران راغلو واى د مارزکو او پير کوټيو مشران هلته لاره کي ناست دي چي زموږ د مدرسې طالبانو څه جرم کړى.کومندان صاب ته و واياست که هر جرم ثابت سو موږ جرماني ته تيار يو.کومندان ورته ويل ورسئ 6 لکه افغانۍ ورڅخه راوړئ او خپل پنجاپيان دي يوسي کني زۀ يې همدلته کندو ته غورځوم.هغو خوارانو پيسې نه لرلې.څو.ورځي شهيدان د شيخانو د کلاو خواته پراتۀ و.آخر يې په درې لکه فيصله سره وکړه شهيدان يې ورکړو.

د هغو پنجاپيانو قبرونه پيرکوټيو او مارزکو کي دي.نن به يې روحونه سخت خوشحال وي.

تقبلهم الله




# دعزیز الله کاروان په وژلو سره د طالبانو پیغام

**لیکوال: حماد نیازی**

تېره شپه څه د پاسه اته بجې د پکتیکا ولایت د ځانګړو ځواکونو_صفر یک قطعې قومندان عزیز الله کاروان په پلازمېنه کابل کې ترټولو خوندي سیمه ۳ مکرویانو کې، په یوه پارک کې ووژل شو .

د کاروان له وژل کېدو لږ روسته طالب ویاند سمدستي پر خپل ټویټر د برید پړه ومنله .

عزیزالله کاروان په پکتیکا ولایت کې تر ټولو ظالم، وحشي او امریکایانو ته نیږدې قومندان و، نومړی په ۲۰۱۱ ع کال کې د اربکیانو مشر۔ وټاکل شو، چې په همدې ولایت کې د اربکیانو موسس بلل کیږي .

په دې ورستیو کې د کورنیو چارو وزارت په چوکاټ کې د ځانګړو پولیسو صفر یک قطعه جوړه شوه، چې په پکتیکا ولایت کې یې مشري عزیز الله کاروان ته وسپارل شوه .

د اربکیانو ظلمونه له هیچا پټ نه دي، اربکیان مستقیما په امریکایانو پورې تړلي وو، چې د هر راز خپل سریو عملیاتو او وحشتونو واک ورکړل شوی و، د کابل حکومت هیڅ ارګان حق نه لاره چې له اربکیانو دې تفتیش او پوښتنه وکړي، اربکیانو چې به چیرته او پر چا هم کوم وحشت او ظلم زړه غوښتل، دریغ به یې نه کاوه .

اربکیانو ټولو هغو سیمو کې چې دوی پکې پیدا شول، داسې وحشتونه له افغان ولس سره ترسره کړل چې قلم یې له لیکلو او ژبه یې له ویلو عاجزه ده، خو په اربکیانو کې د هیواد په کچه عزیزالله کاروان او د هغه تر قومنده لاندې اربکیانو تر بل هرچا ډېر وحشتونه وکړل، په ټول ارګون ولسوالۍ بلکې ټول پکتیکا ولایت کې به داسې کور نه وي چې د نومړي له لوري زورول شوی، بې پته شوی او ربړول شوی نه وي، که د پکتیکا له هر اوسیدونکي پوښتنه وشې، حتما د نومړي په اړه ترخې خاطرې لري .

د اربکیانو له ختمېدو یا کمزوري کېدو روسته امریکایانو د ځانګړو پولیسو قطعات جوړ کړل، دا قطعات عینا د اربکیانو دنده اجرا کوې، له امریکایانو سره یوځای د ولسي خلګو پر کورونو چاپې وهې او چې هر چیرته یې زړه وغواړې ولسي خلګ په نښه کوې.

ځانګړي پولیس_صفر یک قطعه هم لکه اربکیان غونډې د امریکا د استخباراتو سي آی اې له لورې تمویلېږي او رهبري کیږي، پلان او رهبري یې د امریکایانو په غاړه ده او د کابل حکومت تر کنترول پورته دي .

که څه هم یاده قطعه د کورنیو چارو وزارت په چوکاټ کې تش په نوم ځای لري، خو اصلا دا قطعه د امریکایانو ځانګړې قطعه ده چې د کابل حکومت پرې هیڅ واک نه رسیږي .

د بېلګې په ډول: څو میاشتې مخکې د صفر یک قطعې ځواکونو په خوست ولایت کې په نادرشاه کوټ ولسوالۍ کې د یوې کورنۍ پنځه غړي چې دوه یې ښځې، یوه ماشومه او دوه نارینه وو ووژل او دوه نور یې له ځان سره یووړل، عیني شاهدانو رسنیو ته وویل چې وحشي-عسکرو لمړۍ ښځو ته لاسونه ورتړلي، هغه یې وهلې او ډبولې دې روسته یې په شهادت رسولې. ځانګړو پولیسو د کورنۍ غړو له وژلو روسته ټول کورته اور ورته کړ، چې یوه خونه کې یې یوه وړه ماشومه هم وسوځول شوه او مازدا موټر هم د اور خوراک شو .



همداراز د خوست ولایت په علیشرو ولسوالۍ کې یادو ځواکونو د یوې کورنۍ اووه تنه ووژل چې پنځه یې ورونه وو... له دې پېښو روسته خلګو مظاهرې وکړې د خوست لویه لاره یې بنده کړه او له ځایي چارواکو یې وغوښتل چې دا کسان دې محکمه شي، خو ځایي چارواکو یې په ځواب کې وویل چې پر دې قطعې موږ هیڅ واک نه لرو، دا خلک مستقیما د امریکا تر کنټرول لاندې دي. دا مو د نمونې په ډول یواځې دوې پېښې یادې کړې، کنه وې په پکتیا، پکتیکا او خوست کې د دې قطعې له جوړېدلو روسته ولس په شپنیو چاپو کې ډېر وزوروول شو، چې خبرونه یې وخت پر وخت رسنیز شوې.

د صفر یک قطعې او اربکیانو د ظلمونو او وحشتونو له کبله طالبانو ته د دوی مشران مهم او تر همېشني تعقیب لاندې وو، چې دا دی بالآخره د کابل په زړه کې، تر ټولو خوندي سیمه کې، ۳ مکرویانو کې د پکتیکا ولایت لپاره د بادې قطعې یو مهم قومندان د هغوی له لوري په نښه او په خورا ساده ډول، له خپل ساتونکي سره یوځای ووژل شو . بریدګر له هدف په نښه کولو روسته، بریالي شول چې له سیمې ووځي.

د کاروان له وژل کېدو حکومتي چارواکو ته د طالبانو پیغام:

له کومې ورځې چې الخندق عملیات پیل شوي، د هیواد په ګوټ_ګوټ کې د کابل حکومت مهم پوځي چارواکي په نښه شوي او وژل شوي دي، ښکاري چې

طالبانو جګړه ییزې پالیسۍ کې تغیر راوستی دی او د مهمو قومندانانو د وژلو لپاره یې هر ځای کې خپل خلګ ګمارلي او ځای پر ځای کړي دي؛ د کاروان د وژل کېدو پېښه د دا ډول بریدونو روستۍ خو په امنیتي لحاظ ننګونکې پېښه ده .

دا چې طالبانو کاروان په پلازمېنه کې، بیا د پلازمېنې تر ټولو خوندي سیمه کې په داسې ډول په نښه کړ، چې هیڅ ډول ملکي تلفات یې ونه لرل، د کابل لوړ پوړو چارواکو ته د خطر زنګ و .

طالبانو په عملي ډول د امریکا په خدمت بوخت او پر ولس ظلم کونکو ټولو قومندانانو ته پیغام ورکړ چې نور نو هیڅ د پناه ځای نه لرئ او موږ کولای شو چې هرچیرته مو زړه وغواړي تاسو په نښه کړو او له مینځه مو یوسي.

د رواني جګړې د اوږدېدو یو لامل دا ښودل کیږي چې په دې جګړه کې یواځې عسکر وژل کیږي او د حکومت مشران او د هغوی کورنۍ خوندي دي، که طالبانو دا ډول هدفي بریدونو ته دوام ورکړي، دا به د کابل حکومت ستنې ولړزوي او طالبان کولای شي، په داسې بریدونو سره د دښمن د لوړپوړو چارواکو روحیات هم ضعیف او تر روحي فشار لاندې یې راولي.

د کاروان له وژل کېدو ۲۴ ساته نه دې تېر چې د کابل په پغمان ولسوالۍ کې د طالبانو له لوري د استخباراتو یو مهم افسر خان الله هم په چریکي برید کې وژل کیږي.

له دې بریدونو ښکاري چې شاید دا لړۍ به دوام پیدا کړي او د نورو کلونو په نسبت به سږ کال د طالبانو ډېره پاملرنه د لوړپوړو چارواکو هدفي وژنو پر لور وي.

له بله پلوه طالبان کولای شي، په داسې تکتیکي او پیچلیو بریدونو سره دښمن خپل منځ کې بې باوره او پر یو بل شک کونکی کړي، که تاسو رسنۍ تعقیب کړې وي، د ارګون چارواکو په زغرده چیغې وهلې چې څنګه د کابل په ترټولو خوندي سیمه کې کاروان په نښه شو؟ هغوی د کاروان د قتل نسبت ستون پنجم ته کاوه او حقیقت هم دا دی چې که له طالبانو سره د ځینو حکومتي کړیو مرسته نه وي دا ډول بریدونه تقریباً ناممکن دي .

لنډه دا چې داسې تکتیکي او پیچلې بریدونه د طالبانو د قوي مدیریت، نظامي پوهې او پرمختګ ښکاره بېلګې دي، چې په نظامي ډګر کې طالبانو ته ډېرې لاسته راوړنې لرلای شي؛ د حکومت لپاره بیا دا ډول بریدونه ستره ننګونه، د ضعف ښکارندوی او په استخباراتي، امنیتي او روحي لحاظ د بدو عواقبو لرونکي دي.

**دا درې ③ کارونه عملي کړئ!**

**امام أحمد إبن حرب رحمه الله وايي:**

**-د الله جل جلاله عبادت مې پنځوس کاله وکړ، مګر د عبادت حلاوت أو خوند مې احساس نکړ تر څو چې درې شیان مې پرېښودل.**

**①د خلکو خوشحاله ساتل أو رضاء مې د ألله جل جلاله د رضاء په مقابل کې پرېښوده، تر څو چې پر حق ویلو غښتلی شوم.**

**②د فاسقینو صحبت أو ملګرتیا مې پرېښوده، تر څو چې د صالحینو ملګرتیا أو صحبت مې پیدا کړ.**

**③د دنیا حلاوت أو خوږ والی مې ترک کړ، تر څو چې د آخرت خوږ والی مې ومونډ.**

**(سیر أعلام النبلاء: ۱۱/۳۴)**

الله تعالی دې مونږ ټولو ته توفیق راکړي چې، دا خبرې په خپل ژوند کې عملي کړو او د عبادت په خوند پوه شو!

آمین...

# ستا جیب چې نه ډکیږي
# زما ګناه یې څه؟

لیکوال؛ مولوي فیض محمد اغا

د نړۍ هر هېواد استخباراتي اداره لري چې ملک له هر رنګه مشکلاتو څخه وژغوري او د نظامي استخباراتي مداخلو مخنیوي وکړي او ملي مفاداتو ته ژمن اوسي خو بالعکس زموږ د افغانستان استخبارات خپل اولس ته مشکلات جوړوي، د پنځو افغانیو پیداکولو لپاره نظارت خانه له خپل اولس څخه ډکه ساتي او د بهرنیو د نظامي کړیو د مداخلې د مخنیوي په ځای یې هرکلی کوي او ملي مفادات د خپلو شخصي مفاداتو لپاره قرباني کوي،

خصوصاً د ملي امنیت اوسنی رهبري چې د جیب د ډکولو لپاره یې تر هر وخت زیات کوشش روان کړي، دمثال په ډول ویل کېږي چې د نظارت خانې د هر بندي په سر خارجان د شپې او ورځې لپاره تر لسو زیات ډالر ورکوي، خو د دوي مصارف نیم ډالر هم نه دي،

کوشش کوي چې نظارتخانه ډکه وساتي، خصوصا پخوانی(۹۰) ریاست چې اوس په (۲۴۱) ریاست یادېږي، اکثره د تلیفون له لارې نیول کوي، په ډېر لږو شبهاتو سره محبس ډک ساتي، که څوک شناخت پکې ولري کولای شي چې خپل مخالف د دوي له لارې د طالب په نامه په آسانه وځپي او وټکوي، بلکې اکثره کسان پکې د شخصي شخړو له امله همداسې پراته دي، که یې په جیب کې څه درلودل هغه هم ترې واخستل،

زه هم یو داسې شخص یم چې په ناحقه یې د کور مختې هتکړۍ لاسونو ته راواچولې او تر میاشت زیات یې د ازادۍ له نعمت څخه بې برخې کړم، په جیب کې نغدي افغانۍ، راډو ساعت، ایفون مبایل او نور سامان یې هم راڅخه واخستل،

زما په خبر نور ډېر انسانان په ناحقه نیول شوي دي او سامانونه یې د دوي حق ګرځیدلي، ځکه پخپله مې ولیدل چې اولسي خلکو ته په ناحقه دوسیې جوړې شوې وې او د ماشومانو په خبر پوښتني یې ورڅخه کولې،

د ګرفتارۍ په لومړۍ ورځ مو ورڅخه پوښتنه وکړه چې په څه راوستل شوی یم؟ یو سپین ږیري کس چې په معین مشهوره وو او د هیئات حقیقي غړي وظیفه ورکړل شوې وه چې زما څخه پوښتني وکړي ما ترې وپوښتل چې په څه راوستل شوي یم؟

ځواب راکول شو چې ته زموږ سره جرم نه لرې خو ستا په ګرځنده مبایل نمبر زموږ یو مطلوب شخص ته زنګ وهل شوی دی، بیا ماته معلومه شوه چې زموږ د میلمستون خادم خپل ماما او کورنۍ سره زما له مبایل څخه خبري کړې وې.

بیا مې ورته وویل که چیري د خادم له ماما سره په کوم کار او مشوره کې شریک او اګاه ثابت شوم په دار مې وځړوئ،کله چې دوی ومنله چې په ناحقه راوستل شوی یې، د نیولو یوه ورځ مې تقریباً تېره شوې وه، خو بیا هم په زندان کې ساتل کېدلم.

د اختر د خوښۍ په مناسبت چې حکومت د شپږ څلوېښتو ۴۶ کسانو د خوشې کولو اعلان وکړ، یو پکې د مسعود وردګ په نوم بندي هم و، چې د پیسو په بدل کې خوشې کړی شو، د کوم دوسیه چې زما له دوسیې هم کمزورې وه. له خوشې کېدلو څخه وروسته یې راته څرګنده شوه چې زه یې هم شاید د پیسو په بدل کې خوشې کولم.

شاید له مسعود وردګ پرته نور ډېر کسان هم د پیسو په مقابل کې خوشې شوي وي، ځکه ددوي جیبونه ډېر غټ دي، ژر نه ډکیږي او د خپلو جیبو د ډکېدو لپاره یې تل مظلوم اولس په یو او بل نامه محبسونو ته اچولي.

دا لړۍ دوی آن د کارمل او نجیب له وخته پیل کړې، چې د پیسو په وړاندې ورته د یو چا مرګ، زورونه، عزت او حیثیت، اسلامیت هیڅ ارزښت نه لري، همدا وجه وه چې سوله او امنیت په وطن کې له یوې ورځې تر بلې پورې د خرابېدو او ورانېدو په لور روان دی او هیڅوک هم د ځان ساتنې او د امنیت احساس نه کوي،

هر څوک پوهېږي چې د دغو ناخوالو او ستونزو عامل څوک دي خو دا فکر ورسره نشته چې ددغو ناخوالو او ستونزو مخنیوی وکړي د ژبني تضاد کښت هم دلته کرل کیږي ځکه ویلی شو چې امنیت کارمندان د یوې ژبې والا دي او بندیان د بلې ژبې والا وي نو همدا وجه ده چې قومونه یو تر بله د لرې کېدو په حال کې دي بلکې لرې شوي دي.

# د احادیثو د سترې مجموعې

# (المدونة الجامعة) پیژندنه




ژباړن: مولانا احسان الله فاتح

د شیخ الاسلام حضرت مولانا مفتي محمد تقي عثماني دامت برکاتهم العالیه د نوم څخه به کوم تن ناوقف وي، حضرت مفتي صاحب د اسلامي نړۍ د سترو علماو د فهرست په سر کې یادیږي.

نوموړي د درس او تدریس، تصنیف او تالیف، وعظ او تقریر په ذریعه ددین مختلف قسم خدمات انجام کړي او اوس هم دی په مختلفو برخو کې خدمت انجام کولو کې تازه دم په نظر رازي، دده په ژوند کې ډیر روښانه او د یاد وړ خبره داده چې الله تعالیٰ ده ته ډیر لوی لوی صلاحیتونه عطاء کړي، د ډیرو سفرونو او تدریسي مشغولتیاو باوجود کوم تصنیفي او تالیفي کار چې دی یې کوي، چې انسان یې وګوري حیران هم شي او رشک هم وربانديې وکړي، دده ستر علمي خدمات زمونږ د امت محمدي اعجاز دی او د حضرت مفتي صاحب په کرامت سره تعبیر کیږي.

د مولانا محمد تقي عثماني د خداي ورکړي علمي صلاحیتونو یو تازه شاهکار " المدونة الجامعة للأحاديث المروية عن النبی الكريم صلی اللّٰه علیه وسلم" دی.

دا ستره او ګټوره مجموعه د احادیثو تقریباً په څلویښت جلدو مشتمل ده، اوس یې لومړی جلد عام منظر ته راغی.

مولانا مفتي محمد تقي عثماني صاحب ددې کار یو څه تفصیلات د خپلې میاشتینۍ مجلې "البلاغ" په ذریعه زموږ پورې را رسولي دي، که څه ولوست نو اندازه به ورته وشي چې څومره لوی خدمت ترسره شوی، او په څومره خاموشۍ سره ترسره شوی. کوم کارونه چې د حکومتونو په سرپرستۍ کې دلوی لوی اکیډمیو په ذریعه انجام کیږي . د یو دیني مدرسې معمولي شعبې د څو افرادو په راجمعه کولو سره حضرت مفتي صاحب وکړ.

دا هم د احادیثو نبوي اعجاز دی چې اهل علم د حدیث خدمت ځان لپاره دنیک بختۍ ذریعه ګڼي.

مولانا محمد تقي عثماني په خپل دغه د پیژندنې مضمون کې لیکلي چې له نن څخه تقریباً پنځلس ۱۵ کاله مخکې دده یو دوست چې خپل نوم یې هم ظاهر نه کړ دغه تجویز وړاندې کړی وو.

چې څرنګه په ټولو احادیثو باندې داسې شماره ( نمبر ) ولیکل شي چې په نړیواله سطح ټولو ته یو شان مقبول وي .

نن سبا چې د حدیث نمبر ورکول کیږي، نو چې په کوم کتاب کې دغه حدیث موجود وي، یا یې د صفحې نمبر حواله ورکول کیږي. یا د هغه کتاب او د باب یادونه کیږي چې په کوم کې دغه حدیث بیان شوی وي.

په ځینو کتابونو کې په احادیثو نمبر هم لیکل شوی وی، کله د حوالې لپاره دغه نمبر لیکل شوی وي، خو ډیر وخت دا حواله د حدیث د راوستلو لپاره کفایت ونه کړي ، له دې وجهې نه د احادیثو د تخریج په وخت د ډیرو کتابونو یادونه کول ضروري شي، حضرت مفتي صاحب مخ ته په سې لیکي :

ددې صاحب تجويز دادی چې که بلا تشبيه لکه څنګه چې د قرآن کريم آيات د حواله ورکولو لپاره د سورت نمبر او آيت نمبر حواله ورکول کافي کيږي. او دا نمبر د نسخو د اختلاف له وجهې نه بدليږي.

دغه سې که د کوم حديث حواله ورکولو کې صرف دحديث نمبر ذکر شي او همدا شان د يو حديث حواله ورکولو لپاره صرف د حديث نمبر ذکر کولو سره د هغې حديث ټول تفصيلات په يو ځای درته ملاويږي .

نو دا به ډير غټ کار وشی ، په همدې تجويز باندې غور او فکر کولو لپاره په ۵/ او ۷/ د رمضان المبارک ۱۴۲۲ه کې په مکه مکرمه کې يوه اجتماع منعقد شوه چې په هغې کې د حضرت مولانا مفتي محمد تقي عثماني صاحب نه علاوه د هغوي ستر رور حضرت مولانا مفتي محمد رفيع عثماني،

ډاکټر مصطفی اعظمي،

ډاکټر يوسف قرضاوی ( د مصر مشهور عالم، او داسلامي نړۍ دعلماو مشر )،

ډاکټر عبد الملک بن بکر القاضي،

شيخ محمد الطحّان،

ډاکټر عبد الستار أبوغده او د شيخ نظام يعقوبي په شان اهل علمُ او ارباب فضل او کمال ګډون وکړ.

او د دې عظيم کار پلان يي تياره کړ او يو منهج يي ورته برابر کړو ، پور ته ذکر شوي علماء کرامو په دې خبره هم ټينګښت وکړ چې دا عظيم کار به په دارالعلوم کراچۍ کې تر سره کيږي ، او مولانا محمد تقي عثماني صاحب به يي نګراني کوي.

همدا شان دارالعلوم کراچۍ کې "قسم موسوعة الحديث" په نوم سره ديوې مستقلې شعبې قيام په عمل کې راغی ، د دارالعلوم کراچۍ بعضې فضلاء کرامو خدمات حاصل کړی شول او مولانا نعيم اشرف صاحب يي د دې مفيدې شعبې ناظم مقرر کړو.

د کار کولو دا طريقه اختيار کړی شوه چې د حديثو هغه کتابونه کوم چې متداول دي او د هغې حواله په کثرت سره ورکول کيږي، نو د هغې ټول حديثونه د احاديثو په ټولو طريقو سره به واخستل شي ، او دا ټول ۸۰ کتابونه دي او ددې د مؤلفينو ټول روايتونه به په خپل سند سره ذکر کړی شي او د احاديثو زياته ذخيره په همدې کتابونو کې موجوده ده، د دې (۸۰) کتابونو نه علاوه نور هم د احاديثو داسې ډير کتابونه شته چې د هغې مؤلفينو ټول احاديث په خپل سند سره ذکر کړي دي ، اګر چې د دې کتابونو حواله ډيره نه ورکول کيږي ، خو په دې کتابونو کې هم د احاديثو ډيره غټه ذخيره ملاويږي. او دداسې کتابونو تعداد (۷۱۹) ته رسيږي ، د دې ټولو کتابونو به ( بالاستيعاب ) مطالعه کيږي او هغه احاديث به ورنه جدا کړلی شي چې کوم احاديث په مخکينيو (۸۰) کتابونو کې موجود نه وي، د مختلف طرق په متنونو کې که چيرې يو اهم اختلاف وليدل شي، هغه به هم ذکر کيږي او د هغې اسنادې حيثيت متعلق که په متقدمينو کې څه رائې چيرته ذکر شوي وي، نو هغه به هم د حديث سره بيان کيږي ، نو داسې دا ټول (۷۹۹) کتابونه شول ، چې په هغې کې اکثر په مطبوعه شکل کې موجود دي او ځينې صرف په مخطوطه ( خطي، ناچاپ) شکل کې محفوظ دي، که چيرې د احاديثو د تتبع او تلاش په وخت کې داسې احاديث مخې ته راشي چې هغه په دې مخکينيو کتابونو کې نه وي، ليکن د حديث او تفسير په شروحو کې د هغې ذکر ملاويږي نو هغه به هم ورسره شامل کيږي، تر څو دا کار نور هم ډير شي او د داسې کتابونو تعداد (۱۱۱) دی ، نو داسې د دې عظيم کار ابتداء په (۹۱۰)کتابونو کتلو او مطالعه کولو سره وشوه والحمد لله علی ذالک.

د احاديثو د جمعې او ترتيب په دوران کې دا سوال هم مخې ته راغی چې د احاديثو دا مجموعه د حروف

تهجي په ترتیب سره تیاره کړی شي یا د ابوابو په ترتیب باندې ؟!

د ډیر غور او فکر کولو نه بعد دا خبره مناسبه وګڼل شوه چې دا مجموعه به د ابوابو په ترتیب باندې وي، ځکه چې د ډیرو احادیثو او خاص طور باندې د فعلي احادیثو مختلف طرق متن مختلف وي، همدې لپاره د حروف تهجي ترتیب به مفید نه وي بلکی د ابوابو مروجه طریقه به فائده منده او موزونه وي،

لهذا ابواب قائم کړی شول او د هر باب لاندې احادیث راجمع کړی شول او د هر یو یو حدیث ټول طرق او په مختلف طرق سره روایت شوي د ټولو متونو په یو ځای باندې د ذکر کولو اهتمام وکړی شو ، البته دا رعایت هم په کې وکړی شوو ، چې د ابوابو په قائم کولو کې هیڅ قسم فقهي یا کلامي مذهب چهاپ به نه وي، د احادیثو په تخریج کې یې په دې مجموعه کې دا اصول اختیار کړل، کوم حدیث چې د سند په اعتبار سره ډیر زیات مظبوط او قابل اعتماد وي هغه به د "حدیث مختار" په نام سره اول ذکر کیږي ، همدا شان که هغه حدیث چیرې په یو طریقې سره تر ټولو نه زیات جامع سیاق کې راغلی وي هغه به د ( الطریق الاجمع ) په عنوان د سند سره نقل کیږي ، بیا چې د کوم صحابي نه هغه حدیث را نقل شوی وي د هغې ټولو طریقې چی د حدیث په کوم کتاب کې هم راغلي وي هغه ټول طرق به ذکر کیږي ، که په هغې کې چیر ته د الفاظو اهم اختلاف وي هغه به هم ذکر کیږي ، د دینه بعد به هغې "حدیث مختار" ته یو عالمي نمبر ورکړئ شي ، بعض اوقات یو حدیث د یو نه زیات صحابه نه مروي وي، نو د داسې ټولو روایاتو جمع کولو اهتمام به هم کیږي او هغه به صرف د شواهدو په بنیاد ذکر کیږي او هغې ته به یو فروعي نمبر ورکړل کیږي، حضرت مولانا مفتي محمد تقي عثماني حفظه الله په خپل تعارفي مضمون کې د دې کار په نو عیت باندې رڼا اچولې ده او دا عظیم کار یې په یو مثال سره واضح کړی دی، چې د هغې سره به د دې کار افادیت او اهمیت نور هم واضح شي .

د المدونة الجامعة خصوصیات:

د کتاب اول باب په ایمانیات باندې مشتمل دی او په دې باب کې یې چې کوم حدیث اول ذکر کړی دی، هغه مشهور حدیث :

إنما الأعمال بالنیات ، دی.

په صحیح البخاري کې دا حدیث د حضرت عمرؓ نه مروي دی او دا طریقه د احادیثو په طریقو کې تر ټولو غوره او صحیح طریقه ده ، همدا وجه ده چې په دې مجموعه کې یې دا حدیث "حدیث مختار" ګرزولی دی او په سند سره یې نقل کړی ، بیا چې د دې حدیث څومره طریقې په صحیح بخاري او نورو کتابونو کې موجود دي هغه یې ټولې راجمع کړي دي، او که چیرته د الفاظو اختلاف وو هغه یې هم ذکر کړي دي، او دې حدیث ته یې (۱) نمبر ور کړی دی ، او د دې حدیث باقي ټولو طریقو ته یې هم ۱ نمبر ور کړی دی ، البته لاندې یې فروعي نمبر هم ور کړی دی ، لکه څرنګه چې دا حدیث امام ابو نعیم په حلیة الاولیاء کې د حضرت ابو سعید خدری نه روایت کړی دی او دې ته یې ۱/۱ نمبر ور کړی دی، بیا دا حدیث د طبراني په معجم کبیر کې حضرت ابو الدرداءؓ نه را منقول دی او دې ته یې ۱/۲ نمبر ورکړی دی.

د ابن عساکر په تاریخ د مشق کې دا روایت د حضرت انس بن مالک نه مروي دی، او دې ته یې ۱/۳ نمبر ور کړی دی، دا حدیث د بخاري نه علاوه په ۷ کتابونو کې راغلی دی او دې ټولو ته یې جلا جلا فرعي نمبر ور کړی دی.

خلاصه دا چې کوم حدیث چې د احادیثو په کوم کتاب کې په کوم ځای کې هم مروي دی هغه حدیث به تاسو ته په دې مدوّنه کې صرف د نمبر په حوالې سره خپل ټول طرق او مختلف او مشترک متونو سره په یو

ځای کې به درته پیدا شي، تر اوسه پورې (۱۷۲۹۲) احادیثو باندې کار شوی دی،

او د دې احادیثو (۱۷۴۵۳) شواهد هم جمع کړای شوي دي، چې د مختلف طرق مجموعې تعداد یې (۳۳۸۸۳۷) دی . الله اکبر!!

او دا کار مسلسل جاري دی ، احادیث او په طرقو د احادیثو کې مزید اضافه روانه ده ، فی الحال د دې سترې شهکارې او ګټورې مجموعې اول جلد چې په کتاب الایمان باندې مشتمل دی او (۴۴۳) "حدیث مختار" پنځه سوه اوه (۵۰۷)شواهد او (۹۲۸۶) طرق جمع کړئ شوي دي.

او د چاپ لپاره تیار دي او دا جلد د بیروت اشاعت ادارې دار القلم انتهائی اعلی معیار سره شائع کړی دی ، باقي جلدونه هم ممکنه تیز رفتارۍ سره ډیر زر شائع کیدونکي دي.

د دې عظیم کار چې کوم تفصیلات مخې ته راغلل او چې په کومې طریقې سره دا کار روان دی ، په ظاهر هغه ډیر محنت طلب معلومیږي، د سلګونو کتابونو په لاکهونو صفحات مطالعه کول بیا هغه حدیث تلاش کول بیا د هغې شواهد را جمع کول بیا د هغې حدیث مختلف طرق لټول او پیداکول، بیا د متنونو اختلاف کتل وغیره وغیره......

نو دا څه معمولي کار ندی.

الله تعالی دې علماء دیوبند کثرالله سوادهم ته اجر عظیم لا ینفد ور نصیب کړي چې د حدیث دومره لوئ خدمت بفضل الله ترسره کوي چې د هغې مثال نه په تاریخ کې شته او نه به پیدا شي.

جزاهم الله عنا وعن سائر المسلمین احسن الجزاء

یادونه!

لومړی جلد یې اوس عام منظر ته راغلی دی او د دارالعلوم کراچۍ مرکزي کتب خانه کې دستیاب (د



لاس رسۍ) وړ دی.

قیمت یې : ۳۰۰۰ کلدارې دی.

## هند کې د غواګانو وزارت پر جوړولو غور کیږي

**د هند لکهنو ښار کې د وینا پر مهال د دغه هېواد واکمن بي جي پي ګوند یوه مشر امیت شاه ویلي د غواګانو وزارت پر جوړولو غور کیږي.**

**نوموړي ویلي: په دې اړه ډېر وړاندیزونه شوي دي او په باب یې غور او فکر کیږي.**

**د ښاغلي امیت د دغو څرګندونو پر مهال د اترپردېش ایالت اعلی وزیر جوګي ادیتیا ناته هم و. تر اوسه معلومه نه ده، چې دغه وزارت به کوم کارونه کوي.**

**هند کې دا وروستیو کې د غواګانو خوندیتوب او ساتنې په تړاو خونړۍ پېښې شوې دي.**

**په ځینو ایالتونو کې، چې په کې بي جي پي ګوند واکمن دی، د غواوو ساتنې او پالنې لپاره ځانګړي کمېسیونونه رامنځته**

**په هریانه ایالت کې د غواوو ساتنې لپاره د پولیسو ځانګړی ځواک پر دنده ګومارل شوی دی.**

**۲۰۱۴ کال کې واک ته د رسېدو پر مهال لومړي وزیر نرېندرا مودي ژمنه کړې وه، چې د غواوو ټولوژنې مخنیوی به کوي.**

**د هند د ډېرې وګړو (هندوانو) په دین کې غوا سپېڅلی څاروی ګڼل کیږي او په ډېرو ایالتونو کې یې د هغې پر حلالولو بندیز هم لګولی دی**

# حقایق_دي

د ولسمشر د ننۍ وینا مهم ټکي او د استاد محبوب شاه محبوب منطقي ځوابونه :
#ولسمشر:
په راتلونکو دوه کلونو کې شپږ زره ښونځي جوړېږي.
#زه
دا کله امکان لري، ته چې د دوو کلونو په ورځو شپږ زره ښوونځي تقسیم کړې څه باندې اته ښوونځي بایده هره ورځ جوړ شي او ننګرهار کله شپږو زرو ښوونځیو ته اړتیا لري؟
همدا شته یې خوندي کړه، نن هم یو ښوونځی سوزېدلی او درې کارمندان یې شهیدان شوي .
# ولسمشر:
هغه څوک چې په تورو شیشو موټرو کې ګرځي دموټر شیشې ورته ماتې کړئ.
#زه
بې وسه ولس کله کولی شي چې ستا د ملي امنیت،امنیه قوماندان او نورو چارواکو د موټرو تورې ښیښې پاکې کړي؟ منطق دا دی چې دا کار چارواکي وکړي خو نن ته هم تورو ښیښو موټر کې ښکته پورته کېدې!
# ولسمشر:
ستاسې ملاتړ ستاسې حوصله تاسې ماته نور هم رانېردې کوي.
#زه:
موږ خو حوصله وکړه ووژل شو، بې کوره شو، خو تا څه وکړل؟ په داعشو دې کپ کپ کړو!
نو دومره خو بې خبره هم نه یو!
#ولسمشر:
ځوان نسل ته باید مسوولیت او صلاحیت ورکړئ.
#زه:
سمه ده.
# ولسمشر:
هغه پانګوال چې حلالې پیسې ګټې راشئ له ماسره کار وکړئ.
#زه:
چې زورواکی، غل او د مافیا برخه نه وي، داسې پاک پانګوال جلال اباد کې یوه ورځ هم نشې تېرولی، سبا یې تښتوي او د ساتنې ډاډ یې نه ته ورکولی شي نه ولایتي اداره....
# ولسمشر:
هر رییس چې تاسې ته د منلو نه وي راته ووایې ګوښه کوم یې.
#زه:
کوم یو راته د منلو دی؟ اکثرو یې ځانونه چوکۍ پورې مېخ کړي، غله، مفسد او رشوتخواره لا هم حاکمان دي، ته یې له موږ ښه پېژنې !
# ولسمشر:
که هر چارواکي په ټاکنو کې لاس وهنه وکړه ګوښه کوم یې.
#زه:
په زرګونه جعلي تذکرې جوړې شوې او دا چاره لا هم روانه ده او هم ستا رییسان ورکې لاس لري، خو ته یې مخه ونیسه!
# ولسمشر___د_ننګرهار_والي_ته: د غاصبینو د معلومولو لپاره یو کمېسیون جوړ کړه.

#زه:
حافظه دې ولې دومره کمزورې شوه جناب ډاکترصیب! څو میاشتې وړاندې دې د ویشتو امر ورکړی و او اوس یې نه پېژنې بیا کمېسیون یعنې څه؟
#ولسمشر:
دا جنګ ماته په میراث پاتې دی او زه به یې ختموم.
#زه:
نو تا خو زیات کړ، دا قتل عام نه ګورې؟
# ولسمشر:
که د ننګرهار امنیه قوماندان او ملي امنیت رییس درې میاشتو کې تغییرات را نه وړل، ګوښه به یې کړم.
#زه:
ننني ځانمرګی د ښه امنیت بېلګه ده!
# ولسمشر :
پولیس په ننګرهار کې بریالي نه دي.
#زه :
زه هم دا وایم او ته هم توپیر څه شو؟
# ولسمشر:
که د ننګرهار هر چارواکي انتخاباتو کې مداخله وکړه، ګوښه کېدو سربېره یې زندان ته اچوم.
#زه :
همدا اوس زرګونه جعلي تذکرې جوړې شوي او لا جوړېږي، ستا ولایتي اداره ورکې لاس لري څېړنې وکړه او بندیان یې کړه!
# ولسمشر:
امنیتیانو راته ویل چې مه ځه ځانمرګی دربانديې کیږي، ما ویل چې له ننګرهاریانو زه زیات نه یم، هغوی چې غواړي ما په ګواښونو له ولسونو لرې کړي، بیا دې فکر وکړي.
#زه:
جناب ولسمشره! دا خو دې کاملاً کمپاینې خبره ده، چې لس فیصده ګواښ هم موجود وي ته له پې پې ایس نه قدم بېرون نشې اخیستی !
# ولسمشر:
ننګرهاریانو د افغانستان لپاره زیاتې قربانۍ ورکړې.
#زه:
نو د افغانستان د ولسمشر په توګه تا څه وکړل، ننګرهار دې په وینو ولمبېده او ته ورته ګورې!
# ولسمشر:
زه له هیڅ ننګرهاري زیات نه یم!
#زه:
هههههه ، ته د کونډې ابۍ له زره څه خبر یې، بس شعار وایه!
خلک له لوږې مري، ډوډۍ نه ور رسي او ته ورسره ځان برابروې.
چېرته عزیز خان چېرته ملنګ عبرالرحمان؟



**په سعودي عربستان کې د غونډې په اړه**

# د اســـــلامي امــارت اعـــلامـــيـــه

له تیرو دوه ورځو را هیسې د سعودي عربستان په جده او مکې مکرمې ښارونو کې د افغانستان په اړه دوه ورځنۍ غونډه نن پای تـه ورسیده.

په دغه غونډه کې که څه هم د افغانستان سیمي او حتی ټولي اسلامي نړۍ نه کوم مشهور او منل شوي عالم برخه نه وه اخستې او زیاتره ګډونوال یې دحکومتونو رسمي مامورین و نوځکه یوه هم دا جرئت ونه کړ چې په افغانستان کې د امریکا اشغال، نظامی شتون، په بې و زلو افغانانو دامریکا بې رحمه بمباري او ورسره نورې ناخوالې اقلا په دې نیت هم یادې کړې چې باید دا وضعیت تغیر وکړي!!؟

د اسلامي امت لوی او ماشوم په دې پوهیږي چې په افغانستان باندې د امریکا لخوا اوولـس کالـه کیـږي تجـاوز روان دی، ملـک اشغال دی، حاکمیت تروړل شوی، څو تنه بې هویته او جنایتکار اشخاص د الوتکو او وژنو په مټ په دې ملت تپل شوي.

په کار خو دا وه چې اسلامي کنفرانس، عالمانو او کوربه هیواد له خپل نړیوال وجاهت څخه په استفاده له اشغالګرې امریکـا، نـاټو او نورو حشربانو څخه غوښتنې وای چې د افغانستان په مظلوم او بیچاره اولس بمبارونه ودروي او د هغوی د حریم له پایمال کیدو څخه نور لاس واخلي.

خو برعکس هڅه وشوه چې له افغانستان څخه دوهم فلسطین جوړ شي، د مبارزینو لاسونه یې وتړل شي او د اشغالګرانو پـه ظلـم او جنایاتو چشم پوشي وشي.

په داسې کولو سره به روان جهاد ته چې د الله تعالی په امر دزرګونوجیدو علماءکرامو په فتوی او د الله تعالی په نصرت پیل شـوی او نړیوال استکباري ځواک یې له ماتې او شرمسارۍ سره مخ کړی هیڅ کوم زیان ونه رسیږي، زیان به هغه اشخاص ګوري چې د دنیوي متاع او پیسو لپاره یې خپل مسئولیت ترک کړ، د امت د ویښتابه پرځای یې د امت په سترګو کې د خاورو شندلو هڅه وکړه او د امریکایانو په ګټه دریځ یې خپل کړ.

افغانان پوهیدل چې دا ډول غونډې د امریکایي چارواکو او نظامیانو طرحه او برنامه ده، ځکه چې وار له مخه یې امریکایی قومندان نیکولسن د مذهبی فشار په عنوان طرحه وړاندی کړی وه او پرون د امریکا د دفاع وزیر جمیز متیس یې له جوړیدونکونه مننـه وکـړه؛ خـو داچې د مسلمان په حیث او بیا د عالم په نوم ځینو ځیرو په کې رول ولوباوه واقعا د اسلامي امت خـورا بـد او دردونکـی حالـت ښـکاره کوي.

ان شاءالله د حق د لارې مبارزین به د قیامت په ورځ د دغو تش په نامه عناصرو څخه د الله په دربار کې شکایت کوي او له امـت، اسلام او جهاد سره د دغې لوی جفا سزابه ورته غواړي.

د سعودي عربستان له حکومت نه مو هیله داده چې د افغانستان د اشغال په پای ته رسولو کي مرسته وکړي او په دې لاره کې مثبت رول اداکړي، د داډول غونډو لپاره موقع ورکول به یې حیثیت ته صدمه ورسوي.

زموږ جهاد د باعمله دیني عالمانو په لارښونو او رهبري پیل شوی او روان دی، د جهاد اکثره پرسونل مو په دین پوه اشـخاص دي، نو ډاډه یو چې د امریکا په فرمایش نیول شوي دریځونه به زموږ په مبارزه هیڅ ډول منفي اغیز نه لري او نه به هم د امریکایانو د حتمـی او را نیږدې شکست مخه نیولی شي. ان شاءالله وما ذالک علی بعزیز

د افغانستان اسلامی امارت

۱۴۳۹/۱۰/۲۷هـ ق

۱۳۹۷/۴/۲۰هـ ش ــ 11/7/2018م

Srak Magazine

